# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو، کلتور او گرځندوی ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

نن پر تول قلمستان دی د استاد غم
پر قیتول و پر خیبر و پر شمشاد غم
مجال نه راکاوه اوښکو، چي یې وکښم
ورځ و کال، میاشت و ساعت د دې نامراد غم
غمشریک راسره عقل سو، وې لیکه!
په تاریخ کي د دې غم چي دی هفتاد غم!
قوم، ولس، یاران بې سره افغان شوب سو
چي نازل سو پرې ناڅاپه د (رشاد غم)

محمد معصوم "هوتک"

ځلورم کال، پنځمه او شپږمه گڼه، لینډۍ - کب، دریمه دوره، پرله پسې شپږویشتمه او اووه ویشتمه گڼه- ۱۳۸۴ل کال



د علامه رشاد بابا رحمة الله علیه پر ژوندانه خو خبري

علامه رشاد د تاریخ لیکني په ډگر کي

د متروکو او ارکاییکو لغتونو په ژوندي کولو کي د علامه رشاد هڅي

بهزاد- یو خارق العاده هروي نقاش

د فلسفي او ژوند نړۍ
بلقیسه څوک وه؟

بسم الله الرحمن الرحيم

رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴿٦﴾

(سورةالدخان)

## ترجمه

د پاره د رحمت ( او مهرباني پر خلقو ) له رب ستا بېشکه هم دی دی ښه اورېدونکی د ټولو ( اقوالو ) ښه عالم په ( ټولو احوالو ).

## تفسیر:

يعني الله تعالی جل جلاله د ټول عالم له ګردو ( ټولو ) حالاتو څخه باخبره دی د دوی غږ او دعاء اوري.

## د پښتنې د لومړي مخ شرح :

- علامه رشاد بابا رحمة الله عليه په ډيلي کي د آل انډيا راډيو سره د مرکې پر مهال ( ۱۳۶۳ ل )
- د علامه رشاد رحمة الله عليه د وفات د تاريخي قطعې حل:-

تاريخي ماده (= د رشاد غم = ) ۱۵۴۹-

د قوم، ولس، ياران ( سر ) او د افغان ( پښې ) = ق + و + ی + ن = ۱۰۰ + ۶ + ۱۰ + ۵۰ = ۱۶۶ د ( بې سره ) او ( شوې ) کلمات د تخرجي عمليې لپاره قرينې دي او د دې قرينو پر بنسټ بايد له تاريخ ( ۱۶۶ ) منفي سي په دې ډول:- ۱۵۴۹ - ۱۶۶ =۱۳۸۳-

علامه رشاد ( رحمة الله عليه ) د ۱۳۸۳ ش کال د لیندۍ د مياشتي پر يوولسمه.

خدای جل جلاله دي د ده جنتونه په برخه کړي او د ده د لاري پيروان دي خدای






# کندهار

علمي، تاريخي، ادبي او ټولنيزه مجله


مؤسس : محمد ولي ځلمی

سرپرست چلونکی : عبدالمجید بابی

**کتنپلاوی**

داکټر عبدالرازق پالوال، حیات الله رفیقي، عبدالکریم طالب رحیمي، فضل محمد پنهان، عبدالمجید بابی

**کمپیوټر چاري**

مطیع الله روهیال

**بیه**

هیواد : ۲۰ _ افغانۍ

پاکستان : ۲۵ _ کلداري

نور دباندني هیوادونه : ۱۰ امریکایي ډالره

**کلنۍ ګډون**

هیواد : ۱۲۰ _ افغانۍ

پاکستان : ۲۰۰ _ کلداري

نور دباندني هیوادونه : ۸۰ _ امریکایي ډالره

**پته**

اه کلتور ریاست

د امتیاز څښتن : د اطلاعاتو، کلتور او ګرځندوی ریاست

دریمه دوره

څلورم کال ، پنځمه او شپږمه ګڼه _ پرله پسې شپږویشتمه او اووه ویشتمه ګڼه

لېندی _ کب (قوس _حوت)


## په دې ګڼه کښي




Kandahar_Majala@hotmail.com

بسم الله الرحمن الرحيم

سرلیکنه

# د علامه رشاد بابا رحمة الله علیه لومړی تلین

د هیواد او سیمې د وتلي او منلي پوه ارواښاد علامه رشاد بابا رحمة الله علیه د لومړي تلین یادونه او لمانځنه هغه لوی فرهنګي پور و چې د ډېري ورځې برخې اداینې ته یې د کندهار د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی ریاست اوږه ورکړه او په مېړانه سره یې د علامه بابا سپېڅلي او په فرهنګي چوپړ سترې اروا ته د عقیدت د ګلونو بې شمېره ګېډۍ وړاندې کړې. که یو څه مخته ولاړ سو د ژوندیو اتلانو د درنښت د پر ځای کېدني له پاره هم همدې ریاست د لومړي ځل له پاره قدم پورته کړی او دا قدم هم د نېکه مرغه د علامه بابا رحمة الله علیه په اړه او د پله بڼ (باغ پل) په ودانۍ کښې د دوی د یو اتیایمې کلیزې **یادونه وه**، کله چې دا اتل د اجل په غوښتنه زموږ څخه د جسمي بېلتون سفر پیل کړ د دوی د نوراني **څېرې او فرهنګي وتلي** ورتیا روښانه ډېوو د همدې ریاست له پاره لارې لا روښانه او له برکته یې وتوانېدو چې **د دوی لومړی اختر** د دوی د قبر د پاسه د یوې غونډې په اوږدو کښې په ویناوو، شعرونو او دوعاوو سره **ولمانځو**.

دوی ته د همدغو **درناوېو** په لړ کښې د دوی لومړي تلین ته د دې فرهنګي اتل د ژوندانه د بېلابېلو مهالونو **څخه د (۲۵۰)** لویو لویو جولیانو (عکسونو) څخه یو د لیدني وړ نندارتون او د دوی د جامو، علمي **وياړونو**، ستاینلیکونو او ډېرو هغو څېزونو څخه چې په ژوندانه کښې دوی د ځان له پاره کارولي وه **همېشنی** یادتون پرانیست.

دغه وروستۍ **کړنه** د اطلاعاتو کلتور ریاست ته د بشپړه ویاړ خبره او لویه بریا بولو ځکه د هیواد په فرهنګي تاریخ کښې دا هغه بېساري نوښت دی چې تر اوسه په دې هیواد کښې د هیچا له لوري هیڅ ځای نه دی تر سره **سوی**.

د دې ټولو سره سره **دا هر څه** د دوی د شان په پرتله لږ دي.

که څه هم هغوی خپل ځان خپله ځلولی او خپل ځان یې په علمي ډول په ټولو پېژندلی دی، د دوی هره پاته کرښه او پاڼه به د دوی د نامه درنښت تره ابده همداسې درون وساتي، خو دلته د دود خبره ده چې د دود درنښت د ټولو څخه د احساساتي او افتي ویناوو او بېځایه نمایشي غورځو پرځو پر ځای عملي کړنه غواړي او د وجدان او ضمیر په حکم دغسې حقدارانو ته عملاً سر ټیټونه غواړي، چې د بده مرغه داسې څه موږ د همدې فرهنګي مېړه په لومړي تلین کښې د دغه او هغه له لوري دلته او هلته ډېر لږ ولیده.

په درنښت

اداره

**نحمده و نصلی علی رسوله الکریم، و علی آله و اصحابه اجمعین امابعد**

موږ پخپلو مختلفو صحبتونو کي د اسلامي عقيدې او اسلامي احکامو او د اسلام د دين د اجتماعياتو په شاوخوا کي له خپلو گرانو وطنوالو سره خبري اتري کړي او په دغو موضوعاتو موږ تر يوې اندازې رڼا اچولې ده .

موږ په خپلو تېرو صحبتونو کي دا ويلي وه چي اسلام مختلفي شعبې لري چي مهمترينې شعبې يې دغه لاندي ځانگي تشکيلوي :

اول :: عقايد

دوهم :: عبادات

دريم :: معاملات

څلرم :: له کون او جهان سره د انسانانو علاقه

پنځم :: اخلاق

عقايد عبارت دي له دې څخه چي انسان پر خداى، انبياوو، ملايکو، کتابونو او د قيامت پر ورځ ايمان راوړي او هغه حق وگڼي .

عبادات هم عبارت له لمانځه، روژې، زکات او حج څخه دي چي د دغو وظايفو انجام او پابندي د ايمان په دعوى کي د انسان د صدق علاقه گڼل سوې او د انسان د ايمان د قوت او . . . سبب بلل کېږي .

معاملات هم له نکاح، تجارت او نورو يومي اړتياوو څخه عبارت دي چي د ټاکلو حدودو په داخل کي اجراء سي او د خلکو د مالي او ناموسي صيانت سبب وگرځي .

له کون او جهان سره علاقه هم عبارت له دې څخه ده چي انسان د جهان په مقابل کي مسئوليت لري چي هغه وپلټي او د علمي وسايلو په استناد ځان د طبيعت په اسرارو پوه او هغه د ځان او خپل جهان د وداني او تعمير له پاره استخدام کړي . د ژوند له منافعو او مزاياوو خوند واخلي او د خپل ژوند د سعادت د تأمين له پاره د ځمکي په گېډه کي پټ معادن او د سندونو په تل کي دننه پراته جواهر په کار واچوي، تر څو چي د مسعودانه او مرفهانه ژوندانه خاوند وي او د خلقت د فلسفي په اساس د خپل

# اخلاق

# او

# اسلام

اروا ښاد مولانا محمدشاه ارشاد

خلافت وظیفه انجام کړي او د دغي وظیفې د انجام له پاره د ژوند له وسایلو څخه د استفادې کولو په وسیله ځان تقویه کاندي او پوه سي چي د جهان ټول نعمتونه د حضرت انسان له پاره پیدا سوي او انسان حق لري چي له هغو څخه استفاده وکړي، لکه چي قران کریم فرمایي:

قل من حرم زینه الله التي اخرج لعباده و الطیبات من الرزق !

یعني اې محمده ! دوی ته ووایه چي د زینت او آرایش اسباب چي خدای ﷻ د خپلو بندګانو له پاره هست کړي او پیدا کړي دي او پاکي روزۍ چا حرامي کړي دي !

او لا دا چي فرمایي:

یا ایهاالذین آمنوا لا تحرموا طیبات ما احل الله لکم و لا تعتدوا ان الله لا یحب المعتدین و کلوا مما رزقکم الله حلالا طیباً واتقوالله الذی انتم به مومنون !

یعني اې مومنانو ! کوم پاک شیان چي خدای ﷻ تاسي ته حلال کړي دي هغه پر خپلو ځانونو مه حراموئ او له ټاکلو حدودو تېری او تجاوز مه کوئ، ځکه چي خدای ﷻ تېري کوونکي نه خوښوي او څه شي چي خدای ﷻ در کړي او روزي کړي دي هغه په حلاله او پاکه توګه وخورئ. له خدای نه ووېرېږئ او له ټاکلو حدودو تجاوز مه کوئ. له هغه خدای څخه وبېرېږئ پر کوم چي ایمان لرئ.

بل ځای فرمایي:

هوالذي خلق لکم ما في الارض جمیعا !

یعني پاک خدای ﷻ هغه ذات دی چي د ځمکي ټول شیان یې ستاسي له پاره پیدا کړي دي چي فایده تري واخلئ.

دغه آیتونه په صراحت سره پر دې دلالت کوي چي ټول کون او مکان او هر څه چي په دې جهان کي دي هغه ټول د حضرت انسان د استفادې له پاره پیدا سوي او باید استفاده ترې وکړي. مګر دومره خبره ده چي انسان سره له دغو ټولو فضایلو چي لري یې او سره له هغو ټولو ښو استعدادونو چي د هغه په سرشت او خټه کي ایښودل سوي دي ځیني بد استعدادونه او بد خویونه هم لري چي که جلوګیري او مراقبت یې ونه سي او پر خپل سر خوشي کړل سي نو انسانیت لا څه چي حیوانیت هم ترې عار کوي. یو له دغو بدو خویونو او بدو استعدادونو څخه حرص او د ټاکلو حدود نه رعایتول دي چي د انسان په خټه کي ایښودل سوي او دغه غرایز یې د انهماک او انحطاط پر لار بیایي. د حلال او حرام فارمول ترې هېروي او غواړي چي د نورو په ستوني پښې کښېږدي او هر څه د ځان په ګټه راواړوي، ځکه د انسان حرص حد او معیار نه لري او نه بس پېژني. دغه غریزه د ژوند د ټولو منافعو په حصول او تدارک کي خپل رول لوبوي او انساني کرامت او شرافت یې ترې هېروي.

همدغه ځای او همدغه علت دی چي الهي ادیان یې منځ ته راوستي دي تر څو چي هر څه د انسان له پاره تجدید کړي او انساني کرامت یې وساتي، د دغه هدف د حصول په یاد لرل لکه چي وویل سوه د عقایدو او عباداتو له لاري استفاده کېږي. مګر دا خبره هم په یاد لرل په کار دي چي عقاید او عبادات هغه وخت خپل مطلوب نتایج ورکوي چي له اخلاقو سره مقرون اوسي ځکه چي د الهي ادیانو تاریخ په خپلو ټولو مراحلو کي پر دې شهادت ورکوي چي کوم سعادت چي له عقایدو او عباداتو پوري مربوط ګڼل سوی هغه د اخلاقو له ښه والي نه پر ته میسر بدای نه سي.

ایمان په دې معنی چي یوازي د خدای ﷻ د وحدانیت معرفت وي او عبادات چي یوازي یو څه مخصوص حرکات اوسي او په اخلاقو متکي نه وي کوم ارزښت نه لري. یوازي دا هم کفایت نه کوي چي انسان په دې وپوهېږي چي صدق فضیلت او کذب رذیلت دی او لا اخلاص لوړ تیا او مکر او فریب انحطاط دی. بلکي اخلاق دې ته وایي چي پر خپل نفس هغه ملکه پیدا کړي چي مناسب شیان وکړي او له نامناسبو شیانو څخه ځان وژغوري او خلک په دې معنی باندي هغه اصل دي چي د عقایدو او عباداتو د اثر د ښه مظهر نښه ګرځي او پر ته له دې کوم ارزښت نه لري.

لکه چي ویل سوي دي:

العقیده و ما الیها دون الخلق شجره لاظل لها و لا

ثمر . والخلق دون عقيده ظل شبح غير مستقر !

يعني عقيده او هغه څه چي عقيدې ته ورته او نژدې وي له اخلاقو نه پرته هغې ونې ته ورته ده چي نه سيوری لري او نه مېوه ، او اخلاق له عقيدې نه پرته د هغې شبحې سيوري ته ورته دي چي هيڅ قرار او ثبات نه لري .

همدغه وجه ده چي د اسلام دين د اخلاقو د تعميم له پاره خپله ټوله توجه صرف کړې او په دغه باره کي يې خاص اهتمام ښودلی دی .

حتی حضرت پيغمبر ﷺ د خپل رسالت او بعثت غايه او علت باعثه بللی لکه چي فرمايي :

"انما بعثت لا تمم مکارم الاخلاق !"

يعني زه خاص د همدې له پاره رالېږل سوی يم چي ښه اخلاق تعميم او ترويج کړم او انساني ټولني د کريمانه اخلاقو پابندي کړم .

حضرت رسول ﷺ په دې باره کي ډېري وصاياوي لري او يو ځای فرمايي :

"اثقل ما يوضع فی الميزان يوم القيامه تقوی الله و حسن الخلق !"

يعني کوم شی چي د قيامت په ورځ د ميزان په تله کي دروند راځي هغه تقوی او حسن خلق دی .

يوه ورځ يو څوک حضرت رسول ﷺ ته راغی او مخي ته يې ودرېد او پوښتنه يې ترې وکړه چي : "دين څه شي دی ؟"

نو رسول الله ﷺ ورته وويل چي : ښه اخلاق لرل دي ! بيا له ښي خوا ورته راغی او پوښتنه يې ترې وکړه چي : "دين څه شي دی ؟" پيغمبر ﷺ بيا هغه ځواب ورکړ . په دريم وار له کيڼي خوا ورته راغی او عين هم‌هغه پوښتنه يې ترې وکړه .

آنجناب ﷺ بيا هغه ځواب ورکړ چي اول يې ورکړی و .

همدارنګه يوه ورځ د حضرت پيغمبر ﷺ په حضور کي د يوې ښځي نوم واخيستل سو چي پلانۍ ښځه درسته ورځ روژه او درسته شپه عبادت کوي مګر ډېره بدخلقه ده او خپل ګاونډيان په خوله او ژبه آزاروي ، حضرت پيغمبر ﷺ وفرمايل چي : دغه روژې او دغه لمونځونه فايده نه لري بلکي دغه ښځه د دوږخ وړ ده .

دغه خبري ټولي پر دې دلالت کوي چي اخلاق د اسلام په دين کي خاص مقام لري او د حقيقي ايمان او اسلام خاوندان هغه کسان دي چي ښه شېوه ، ښه خوی ، ښه اخلاق او ښه ګوزاره ولري او نور مسلمانان يې له لاس او خولې څخه په امان اوسي . ښه کارونه د ارادې او عقيدې له مخي ترې صادرېږي او له بدو کارو څخه د عقيدې او ارادې له مخي ځان ژغوري . دغه خلک دي چي حقيقي مسلمانان دي او د انساني کرامت تاج يې پر سر ايښی دی .

**والسلام**

**واخر دعوانا ان الحمدلله رب العلمين**



## حق او قانون

❀ حق ارزښتمنه او درنه کلمه ده او که هر څومره ترخه هم وي په خپله خوږه او منلې پايله ارزي.

حضرت علي ؓ

❀ هغه قانون چي د تندخويې پر بنسټ ولاړ وي، تر يوه موده پوري به وچلېږي، خو تلپاتې کېدای نه سي.

"ګوستاولوبون"

❀ يوه ناحقه پرېکړه تر ټولو جنايتونو، ډېر تاوان او ويجاړتيا رامنځته کوي، ځکه جنايت د ژوند وياله او ناحقه پرېکړه د هغې چينه چټلوي.

"فرانسين بيکن"

❀ رښتيا وينا ترخه وي، خو لږ شمېر خوږې ويناوي رښتيا وي.

❀ حق و قانون هغه توره ده چي لاستی يې د زورور او تېره څوکه يې د کمزوري په لاس کي وي. په دې توګه واک له زورور سره دی او که کمزوری هر ډول تېنګار او سرغړاوی کوي، بېله دې چي خپلې ګوتي پرې کړي، بله څه ګټه نه لري. "محمد حجازي"

❀ داسي تګلاره ولره، چي هغه د ټولو قانون سي.

"کانټ"



## د ارواښاد اکاډمیسین پوهاند عبدالشکور رشاد
## د لومړي تلین په مناسبت د افغانستان د اسلامي جمهوریت
## د جمهور رئیس پیغام

ارواښاد اکاډمیسین پوهاند عبدالشکور رشاد د هیواد له نومیالیو استادانو، څېړنکیو او سترو فرهنګي او اجتماعي شخصیتونو څخه و .

ده خپل ګرانبها ژوند څېړنو او د وطن د اولاد روزنې ته وقف کړی و او د ژوند تر پایه یې په ډېره مینه دا کار وکړ . په لسګونو تحقیقي آثار یې ولیکل او په سلګونو شاګردان یې وروزل .

له تحقیقي لوړ صلاحیت سربېره استاد د پښتو او دري ژبو شاعر، لیکوال او ادبي مترجم هم و .

استاد د پراخې حوصلې او په تمامه معنی یو جامع فرهنګي شخصیت درلود . د هیواد فرهنګیانو ته منلی او د سیمې د هیوادو په فرهنګي کړیو کې هم د کافي شهرت خاوند و .

استاد زموږ پر فرهنګي کړیو او علمي مؤسساتو ډېر ستر حق لري، د ده آثار باید چاپ او د درناوي غونډې یې پر خپل وخت دایرې سي .

د دې غونډې د جوړونکیو دې همت مل وي چې د استاد د لومړي تلین په مناسبت یې دا غونډه جوړه کړې ده . د غونډې او ټولو ګډونکیو برې د لوی څښتن له درباره غواړم .

**حامد کرزی**
**د افغانستان د اسلامي جمهوریت جمهور رئیس**



## د علامه اکاډمیسین پوهاند عبدالشکور رشاد د لومړي تلین
## د لمانځنې په مناسبت د افغانستان د علومو اکاډمۍ پیغام

درنو پوهانو، مشرانو، فرهنګیالانو، وروڼو او خوندو !

السلام علیکم ورحمه الله وبرکاتهٔ

نن د هیواد د اتل شاعر، لیکوال، ژبپوه، تاریخپوه، وتلي څېړندوی او بالآخره څو بُعدي سیاسي او فرهنګي شخصیت درانه استاد علامه رشاد د خواشینوونکي او نه جبېره کېدونکي مړینې لومړی تلین د کندهار په تاریخي

ښار يعني اشرف البلاد کي چيرته چي د هيواد ملي اتلانو ميرويس نيکه او لوی احمدشاه بابا خاپوړي کړي، د فرهنګپال او ننګيالي افغان ولس له خوا لمانځل کېږي .

دا د هغه پېژندل سوي او نه هېرېدونکي علمي شخصيت د لمانځني کالغونډه ده چي (۸۴) کاله وړاندي يې د کندهار ښار د بابړو د کوڅې د عبدالغفور خان په کور کي سترګي وغړولې، ورو ورو را لوی او د علم په نور منور او وروسته په فرهنګي کړيو کي د "رشاد" په نامه وپېژندل سو او بالآخره د خدای ورکړي پوهي په برکت د علامه، اکاډميسين او پوهاند د لوړو القابو تر څنګ د علم او ادب په آسمان کي د شپړم ستوري په نامه وپېژندل سو .

د پوهي، علم، درايت او نېکو اخلاقو پلوشې يې د هيواد ګوټ ګوټ او سيمي ته څه چي آن نړی ته خپرې سوې او دا يو حقيقت دی چي نن نړۍ د هغه له نامه او آثارو سره آشنا ده او هغه د يوه وتلي علمي شخصيت په توګه پېژني .

علامه رشاد نه يوازي دا چي پر پوهي او فرهنګ مين شخصيت و بلکي د آزادی د لاري پتنګ هم و، همدغه علت و چي په خپل ۸۳ کلن ژوند کي يې له يوه خدايه ﷻ پر ته بل هيچا او هيڅ زورواکي ته هم سر ټيټ نه کړ او په هسکه غاړه يې ژوند وکړ چي په دې اړه يې له سلګونو بيتونو څخه دا بېلګه لولو :

د مجـنون ژوندون به څـه وي چي ليلا مري
څه په کار دی تش کالبوت چي زړه د چا مري
زړه ډېـــوه ده دا د خـــــتو په قــــالب کـي
خـدايه ومـه کــړه چي دا ډېـــوه د چا مري
چي مــرغه لاړ ســـي قفس د مــــاتېدو دی
که به زړه مري تش کوګل دي لا پخــوا مري
هــــيڅ ممـکن نه دی پاېښت د هـــغه پړي
زړه چي مري کالبوت مجبور دی خامخا مري
حــــريت د هـــر ملـت د بـــــدن زړه دی
که دا نه وي هــم ملت مــري هــم بقا مــري

لکه څنګه چي څرګنده ده، آزادي فطرتاً د افغانانو په خټه کي اغږل سوې ده نو ځکه به يې د فاضل استاد علامه رشاد دا بڼغ تر قيامته په غوږونو کي انګازې کوي او هيڅکله به يې هم له ياده ونه باسي او د هغه د ياد د تازه کولو په خاطر به يې زمزمه کوي .

لکه دمخه مو چي وويل علامه رشاد داسي يو متين او متدين شخصيت و چي د هر ډول ستونزو په وړاندي لکه غر ولاړ و او هيچا ته يې د تسليم سر نه ټيټاوه او د خوشال خټک دې شعر به يې تل په مغزو کي انګازې کولې :

د عالم ډېري خبري لور په لور لــــکه لښـــکري
زړه مي نه خوځي له ځايه غر خو هسي وي کنه

نو ځکه يې هيڅکله هم خپل خلک يوازي پرې نښودل او خواره وطن ته يې شا نه کړه، دی همېشه د مظلوم تر څنګ ولاړ و، ظالم او متکبر انسانان يې نه خوښېدل او د هغوی ظلمونه به يې بربنډول :

د مظـــلومو انســـانانو پر سرو وينو ژرندي ګرځي
د بې وسو په سـرو اوښکو ښار. بېديا ده لمبېدلې
دلته بوري. دلته وراري. دلته کونډې يتيمان دي
دلـــته چيغي. دلته وير. دلـــته ژړا ده اورېدلې

دلــته ځيري گــرېوانونه، دلـته ساندي دي گلونه
جــنازه چي د خوښــيو د څندا ده مرگ ويستلي
جامــعه د افــغانانو دغه درويشت کاله کــېږي
په څـــــورو ده څــورېدلې، په جــفا ده ژړېـدلې

ټولو ته ځرگنده ده چي موږ مرگ ته او مرگ موږ ته پيدا دي، خو د استاد رشاد مړينه داسي نه جبيره کېدونکې مړينه ده چي کلونه کلونه به د هغه ځای تش وي، خو په ښوونځيو، پوهنځيو او اکاډمی کي د سلگونو شاگردانو پر روزنه برسېره هغه څه چي استاد موږ ته په خپل (اويا کلن) رښتيني فرهنگي چوپړ په پايله کي په يادگار پرې ايښي دي هغه د ده په سلگونو مقالې، شعرونه، ژباړې او د ده ځانگړي علمي، څېړنيز آثار دي چي کلونه کلونه به افغان زلميان او نور څېړندويان د دغه ويښ زلمي چي د ژوند تر پايه ويښ زلمی پاته سو، له آثارو څخه فيض اخلي او خپله علمي تنده به پرې ماتوي او د ده ياد به پرې تازه ساتي .

په پای کي د افغانستان د علومو اکاډمی د مشر تابه هيئت، ټولو علمي او اداري کارکوونکو په استازيتوب، د هغه پاک روح ته د دعا په ترڅ کي د دې درنې غونډې جوړوونکو، چلوونکو او بلونکو ته چي د پېژندل سوي او ستر علمي شخصيت علامه رشاد د لومړي تلين د لمانځلو په مناسبت يې جوړه کړې ده، د لا زياتو بريو هيله کوم، د لوی خدای ﷻ له درباره ورته تر دې زيات توفيقات غواړم .

د خپلو خبرو په پايله کي دا وړانديز کوم چي د استاد څو بُعدي شخصيت او د ده د علمي څېړنيزو آثارو د څېړني او زياتي پېژندنې، په منظور دي په يوه مناسب وخت کي د يوه پراخ، علمي، څېړنيز سيمينار د جوړېدو لاري چاري وسنجول سي، څو زموږ دغه محبوب علمي شخصيت تر دې زيات هيوادوالو او نړۍ والو ته ور وپېژندل سي ،موږ په دې ستر کار کي له تاسو سره يو .

**ومن الله التوفيق**

**د سرڅېړونکي مرستيال عبدالباري راشد**

**د افغانستانو د علومو اکاډمی رئيس**



# د علامه رشاد بابا د لومړي تلين په مناسبت د کندهار د اطــلاعـــــاتو کلتور او گـــرځندوی رياست پيغام

**د لوی او لوريال ښتن په ستر نامه**

د ارواښاد علامه پوهاند رشاد بابا د لومړي تلين د يادوني او رابلل سوي کنفرانس ټولو ښاغلو گډون کوونکو !
درنو او پتمنو پوهانو !
ليکوالانو ،شاعرانو او د علامه بابا د درنې کورنۍ غړو !
دولتي چارواکو، پتمنو مېلمنو، ورونو او خوندو !
په سلامونو او زښتو زياتو درناوېو مو لمانځم .
تر هر څه لومړی بيا هم د هيواد او سيمي د وتلي او منلي پوه ارواښاد علامه رشاد بابا په مړينه چي د نن څخه يو کال دمخه زموږ د فرهنگي يون د سر والی څخه بېل سو خواشيني ځرگندوم، په علمي ليکنو او څېړنو باندي د

هغوی و سترې او سپېڅلي اروا ته د عقیدت او درنښت د څرګندتیا سره یو ځای د خوښی او په برین جنت کې ور ته د همېشني ښتون دوعا کوم .

علامه رشاد بابا نه یوازې د افغانستان، بلکې د سیمې یوه داسې علمي او اکاډمیکه څېره وه چې د پاخه قلم، رسا ذهن او بشپړه پوهنیز ژغم په برکت یې د تاریخ لیکنې، څېړنو او پنځونو د ارزښتناکو یادګارونو او تلپاته علمي میراثونو د پرېښودنې تر څنګ د ملي ارزښتونو په ځلېدو، د ملي افکارو په خپرېدو، د ملي ویاړونو په انځورېدو او د ملت جوړونې په لاره کې د سترې یاوو په منل کېدو سره هم بریالی ونډه درلودلې وه .

د هغوی ټولې پوهنیزې هڅې د کمال په رنګ او خوند ځلېدې او د جمال و پولې ته ورځ تر ورځې په خوځښت او وړاندې تګ کې وې، نو ځکه یې د ډاډ تر څنګ د ملي او غښتلي منښت وړ تیا هم درلوده .

د هغوی بشپړ او په هر اړخیزه توګه ملي شخصیت او سرېتوب او دا هر څه په یوه سپېڅلي روڼا کې رانغښتې وه او د همدې نورانیت برکت و چې هغوی یې د افغاني مېړني ولس په ځانګړې توګه د فرهنګي سرېو او کرېو په زړونو کې د یوه علمي او ملي اتل په توګه ځای کړی و او د همدې مینې د مینه والو زړونه او سترګې به تل د جمال او کمال په دغه بېساري حسن پورې تړلې وې او په درناوي به د هغوی د یادونو او ذکرونو ډېوه بل وساتي .

نن چې د هغوی د لومړې تلین له امله د هغوی همدې ډول یادونې ته پوهان، لیکوالان، شاعران او د دوی ګڼ شمېر ارادتمندان د کندهار د څینو چارواکو سره یو ځای راغونډ سوي دي، دا د کندهار د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی ریاست ته د تسلی او زښتې زیاتې علاقمندۍ خبره ده چې په دې برخه کې د سترې یاوو او هلو ځلو د سر ته رسېدو د ویاړونو تر څنګ د علامه رشاد بابا د عکسونو یوه غني نندارتون ته د عکسونو برابر بده او پرانسته هم ځانته لویه سرلوړې بولي .

هیله ده غونډه او کنفرانس د لوی خدای ﷻ په مرسته بریالي او د راتلونکې له پاره د علامه رشاد بابا ﷺ او د دوی غوندې د نورو لویو حقدارانو د یادونې او درنښت د پر ځای کېدنې له پاره یوه پر ځای پیلامه وګرځي .

په پای کې ستاسو ټولو له ګډون څخه د زړه له کومې مننه کوم او د لوی ښتن څخه د کنفرانس په کار کې د بریالیتوب دوعا کوم .

**په درنښت**

**عبدالمجید بابی**

**د کندهار د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی رئیس**



# د کندهار پوهنتون د خواخوږۍ پیغام

ویاړم چې د هیواد د یوه پوه او عالم ارواښاد اکاډمیسین پوهاند عبدالشکور رشاد د وفات د لومړي تلین په غونډه کې برخه اخلم .

پوهاند عبدالشکور رشاد د علمي، فرهنګي او تاریخي آثارو په لیکنه ي د لوی لاس خاوند و، د ده په مړینه افغان ولس ویرجن سو او په علمي او اکاډمیک محیط کې لویه خلا رامنځته سوه چې دا خلا به په کلونو ډکه نه سي، د ده لیکني او څېړنې د پښتو په ادب کې نوې لاره پرانستله چې د معنی او مفاهیمو ساده ګي او د خلکو او پرګنو د ژوند تمثیل د ده د ادب او شاعرۍ ځانګړي اوصاف او خصوصیات بیانوي .

دی د افغان ولس، منطقي د تاريخ او فرهنګ ځلاند ستوري و، چې د فرهنګ والو په ژړونو کي يې ځای درلود، ارواښاد پوهاند نه يوازي د افغانستان په سطحه بلکي په نړيواله سطحه علمي او فرهنګي شخصيت و ده په زرګونو شاګردان روزلي دي. د ده ځای د کابل پوهنتون او علومو اکاډمی په فرهنګي، علمي او ادبي ټولنو کي خالي دی، کتابونه، ليکني او څېړني يې د نورو له پاره سرمشق او لارښود دي.

ارواښاد پوهاند رشاد د پرهېز، عزت النفس، وطنپالني او ملي شخصيت خاوند و، د اکاډميسين عبدالشکور رشاد مړينه د افغان ادبي ټولنو له پاره يوه نه جبرانېدونکې ضايعه بلل کېږي، سپارښتنه کېږي چې د ده د آثارو ادبي موزيم دي د کندهار د نورو ليکوالو او اديبانو تر څنګه د مطبوعاتو په تالار کي د ادب او فرهنګ مينه والو ته جوړ سي. د کندهار پوهنتون منسوبين د ده په کارنامو وياړي. موږ د علامه عبدالشکور رشاد رحمه الله له پاره و لوی او مهربان الله جل جلاله ته د مغفرت دعا کوو چې جنت فردوس دې په نصيب سي او ارواح دې ښاده اوسي.

**په درناوي**

**پوهاند ډاکټر قمرالدين "سيفي"**

**د کندهار پوهنتون رئيس**



## د ارواښاد علامه رشاد بابا لومړي تلين په مناسبت د کـــندهار د ښوونې او روزنې رياست پيـــغام

دا چې نن د علامه بابا (ستر ښوواند اکاډمسين عبدالشکور رشاد رحمه الله) د مړيني يو کال تېرېږي موږ د پوهني رياست ټول پرسونل ښوونکي، زده کوونکي او نور کارمندان د دې ستر شخصيت د علم د ډګر څخه د ده وتل نه جبران کېدونکې ضايعه بولو. د خواشينی اظهار کوو او ده ته د لوی خدای جل جلاله له درباره څخه د خپل ديدار او جنت فردوس هيله لرو او هم يې و کورنی او دوستانو ته جميل صبر غواړو. په واقعيت کي د داسي سترو و مېړنو تشه نه سي ډکېدای. برکت دې پر پاته کهول وي، ياد دې تل او مغفرت دې په برخه وي.

**په درناوي**

**حيات الله رفيقي**

**د کندهار د ښوونې او روزنې رئيس**



## د علامه رشاد بابا رحمه الله د لومړي تلينې په اړه د علامه رشاد اکاډيمی پيغام

علامه رشاد اکاډيمي وياړي چې نن د هيواد او سيمي د ستر پوه، لوی څېړونکي، مؤرخ، پوخ ليکوال او نازکخياله شاعر علامه اکاډميسين پوهاند رشاد بابا رحمه الله لومړی تلينه د کندهار په لرغوني او تاريخي ښار کي لمانځل کېږي.

علامه رشاد بابا (رح) د خپل ستري او ستومانه ژوندانه اویا کاله د خپل اولس او د بشر د معنوي خدمت له پاره په څېړنه او پنځونه کې تېر کړل ، حواس او ذهن به یې هر ګړی او هره شېبه د خپل هیواد او اولس د ژبې، تاریخ او ادب د پټو او ناڅرګندو ټکو د سپړنې له پاره په څېړنه بوخت و . ډېر کتابونه، رسالې، پر علمي او ادبي آثارو سریزې او سلهاو مقالې یې لیکلې دي چې د علامه بابا (رح) دغه ګرده آثار د پښتو په معاصره څېړنه او پنځونه کې ځانګړی ځای لري .

د هیواد د ستر پوه علامه رشاد بابا (رح) په یاد چې کومه ننۍ غونډه نیول سوې ده په هیواد کې د ټولو فرهنګیانو او د ادب مینه والو ته د زړه قوت دی . د دې کنفرانس د سمبالوونکو کړیو او سرېو پر زیار او هڅو باندې دې سپېڅلی څښتن برکت کښېږدي .

**د علامه رشاد بابا (رح) یاد دې د ټولو هیوادوالو د علمي _ ادبي بهیر د لارې مشال وي**

**علامه رشاد اکاډیمي**

**کندهار _ افغانستان**



# د علامه رشاد بابا (رح) د لومړي تلین د لمانځلو په مناسبت په سویډن کې د افغاني کلتوري ټولنې پیغام

د کندهار لرغوني ښار چې په خپله غېږه کې یې هر وخت د تاریخ، ادب، پوهې او هیوادپالنې په روحیه اتلان روزلي او د هیواد او ولس چوپړ ته یې وړاندې کړي دي . یو له هغو پیاوړو علمي ستورو څخه استاد اکاډیمسین پوهاند رشاد (رح) دی .

خدای بخښلي استاد چې ټول ژوند یې په ډېر متانت او د کړاوونو په ګاللو د خپل هیواد په خدمت او د ځوان نسل په روزلو کې تېر او ډېر ځوانان یې د خدمت په روحیه ټولنې ته وړاندې کړل . په خواشیني سره باید ووایو چې اوس یو کال پوره سو چې رشاد بابا زموږ په خوا کې نسته او موږ یې ویرژلي پرېښودلو .

دا چې تاسو او د استاد د لارې پیروانو راټیټېلې ده چې د همدې تشې کالیزه لمانځئ، موږ په بهر (سویډن) کې اوسېدونکي افغانان ستاسو دې عمل ته د قدر په ستر ګه ګورو او له خپل لوري هم د خدای بخښلي استاد بابا پاک روح ته د عقیدت ګلونه ږدو او ستاسو سره ځانونه شریک بولو .

موږ ستاسو له خوا په تاریخي او سرلوړي کندهار کې د دې غونډې جوړول د ستایلو وړ بولو .

موږ د استاد د علمي، ادبي او تاریخي آثارو د چاپ او مینه والو ته د وړاندې کولو په کار کې ستاسو ملاتړي یو .

د سویډن د مالمو په ښار کې افغاني کلتوري ټولنه د دې غونډې د جوړېدو نوښتګرو او ټولو ګډون کوونکو ته خپلې نېکې هیلې څرګندوي او په دې لاره کې ځان د دوی سره شریک او هم ږغه بولي .

**په درناوي**

**د افغاني کلتوري ټولنې د مشرتابه جرګه ګی**

**مالمو _ سویډن**

# د علامه رشاد بابا رحمة الله علیه

## پر ژوندانه څو خبري

هــــغه کان چې د گــــوهرو مجموعه وه
د څـــــو رازو کــــمالاتو گنــــجینه وه
د اجل په زلــــزله مــــوږه ورک سو
د مُهرونو دروند عیار یې په مرگ سپک سو
پــــله دې دا عـــــیار نـــته په سکو کي
دا غـــمي به پیـــدا نه سي په کــانو کي

علامه رشاد بابا رح د عبدالغفور خان زوی، د محمدایاز خان لمسی، د محمد جان خان کړوسی، د نېک محمد خان کوسی او د لکي صاحب خان کودی د ۱۳۰۰ ل کال د لړم پر ۲۳ مه نېټه د کندهار د بابړو په کوځه کي زېږېدلی دی. د خپل پلار تر سیوري او ښووني لاندي یې د هغه مهال مروج عربي کتابونه او د انگرېزي الفبا زده کړه. د څلور کالو په شاوخوا کي د پلار سره د هرات په سفر ولاړ او د هرات د هغه مهال د رجالو سره یې د ناستي او خبرو خاطرې تل یادولې.

د پلار روزنیزه او ښوونیزه لار یې خپل د راتلونکي علمي ژوندانه او پوهنیزو څېړنو تومنه بلله. د شپږو کالو وچي د کندهار د گنج ښوونځي ته شامل سو، په هره ټولگي کي په ډېره اوچته درجه لومړی کېدی. د دې ذهین، نابغه او مستعد کوچني آوازې د ښار په څلورو خواوو کي ازانگې وکړې، د هغه مهال د هیواد نومیالي مشر غازي امان الله شاه یې د لیدو په هیله د دوی ټولگي ته ورغی او په پلرني شفقت او پېرزویني سره یې د علامه بابا رح ونبوغ او استعداد ته د حیرت گوته په غاښ کړه.

د دریم ټولگي پای وچي د سقوي ناتار ناسوري څپه پر هیواد خپره سوه او د ټولگیو ور د کوچنیانو پر مخ وتړل سو.

تر څو په ۱۳۱۰ ل کال ښوونځي بیر ته پرانستل سوه او علامه بابا رح په ۱۳۱۲ ل کال له ښوونځي څخه فارغ سو.



د علامه بابا د پلار مړینه په ۱۳۱۳ ل کال کي پېښه سوه او د ژوند لومړنی دنده يې هم د کندهار په مطبعه کي په همدې کال پيل سوه او په همدې کال کي يې خپل لومړنی شعر وليکی خو خپور نه سو .

له ۱۳۱۴ ل کاله څخه تر ۱۳۲۳ ل کاله پوري د کندهار په ابتدائيه او رشيديه ښوونځيو او له ۱۳۲۳ ل کاله څخه تر ۱۳۲۵ ل کاله پوري د کندهار په فرقه کي د صاحب منصبانو د پښتو ژبي د ښوونکي سپېڅلې دندي ته غوره سو او د کوچني معلم په نامه يې په خلکو کي شهرت وموند .

په ۱۳۱۷ ل کال کي يې لومړی شعر او په ۱۳۲۰ ل کال کي يې لومړی ادبي څېړنه په طلوع افغان کي خپاره سوه او په دې ادبي څېړنه کي يې د پښتو خوږ ژبی شاعر عبدالرسول ماشوری، د هغه شعري د يوان، آزادنامه او سفرنامه موږ ته راوپېژندل .

په ۱۳۲۵ ل کال د علامه بابا د سياسي ژوند پيلامه وه . د هيواد د يوازني سياسي گوند ويښ ځلميانو د لاري ملگری سو، په همدې کال د کندهار د ښاروالۍ د انجمن مشر او بيا د ښاروالی مرستيال وټاکل سو . څنگه چي د پوهي او زده کړي سره يې مينه ډېره وه، د لوړو خصوصي زده کړو له پاره په ۱۳۲۸ ل کال هند ته ولاړ د زده کړي تر څنگ يې په هند کي د پښتنو د برمه ډک پير په اړه ژوري علمي څېړني وکړلې او په هندوستان کي د لودي، سوري، کرلاڼي، لواڼي او بنگښو پښتنو د پاچاهيو، نوابيو او کورنيو په اړه يې ډېر پټ ټکي ښکاره او وسپړل . په سانسکريت، بنگالي او زړه هندي ژبو کي يې د پښتو ژبي د کلماتو ريښې وڅېړلې .

تر ۱۳۳۴ ل کال پوري علامه بابا ... د خپلو لوړو علمي زده کړو په لړ کي د هندوستان علمي رتبې "منشي فاضل" او "اديب فاضل" تر لاسه کړلې .

د دغو علمي رتبو په اړه مي د هيواد د درانه او گران استاد خالق رشيد څخه چي د هندوستان په علمي او څېړنيزو برخو کي د ژوري پوهي او درانه نظر خاوند دی، د يوه ليک په ترڅ کي وپوښتل، هغوی ليکي :

". . . د هندوستان په تعليمي بهير کي د عليگړ، اله آباد او



علامه اکاډميسين پوهاند رشاد د هند د رئيس جمهور فخرالدين علي احمد سره د روغبړ پر مهال (۱۳۵۴ش)

د کن عثمانیه پوهنتونو د اسلامي زده کړو له امله خورا مشهور دي، په دغو پوهنتونو کي د تېري پېړۍ په اوږدو کي یو شمېر لنډ مهاله پروګرامونه وه چي نن سبا یې ځای اوسنیو نویو ډګریو لکه : سرټیفکېټ، ډیپلومه، اډوانس ډیپلومه او لسانس نیولی دی . هندوستان له ډېر پخوا څخه خپل تعلیمي پروګرام په لوېدیز ډول عیار کړی، همدا وجه ده چي کله اوس هر څوک په هندوستان کي زده کړي وکړي، دوی په زیاتو برخو کي په لوېدیز کي کومه ستونزه نه لري .

په علیګړ پوهنتون کي دغه نوی پروګرام د سر سیداحمد په زیار او هڅه د مسلمانو ځوانانو له پاره پیل سوی چي تر اوسه دغه پوهنتون په هند کي د پوهنو او زده کړو په برخه کي خپل اهمیت لري . په دغه پوهنتون کي د اردو ژبي زده کړه آن له پیل څخه بیا تر ننه په خپل ذات کي خورا مهمه او د پاملرني وړ وه په تېره هغه مهال چي انګرېزانو په هند کي د فارسي ټغر ور ټول کړ، هندي پوهاند په دې پوه سول چي له دغي بلا سره به اردو ژبه هم یو ورځ لاس او ګرېوان کېږي، همدا و چي دوی د اردو ژبي له پاره همدا شان پروګرامونه او کورسونه د دغي ژبي د پیاوړتیا او غوړېدو په خاطر تر لاس لاندي ونیول . چي دغه لړۍ بیا ټولو هغو سیمو ته چي اردو ژبه یکښي د پاملرني وړ وه، لکه : ډهلي، دکن، بهوپال، اترا پردیش، بهار، اله آباد او نورو ته وغزېده . چي تر اوسه پوري هم د اردو پالني او زده کړي دغه لړۍ او دغه دود په بېلابېلو برخو کي روان دی خو دا چي اوس د هند په قانون کي هندي ژبه او د هغې ناګري لیک دود منل سوی، د اردو ژبي هغه دوران اوس مخ پر ټیټه شکاري . په علیګړ او یو شمېر نورو علمي مؤسسو لکه جامعه اردوی هند کي د اردو ژبي زده کوونکو او هغو کسانو ته چي په دغه ژبه کي به یې زده کړي کولې د دوی په تعلیمي مفرداتو کي د زده کړي یو سیستم و چي (منشي فاضل او ادیب فاضل) علمي ډګرۍ به یې ورکولې . دغه لړۍ په رښتیا هم هغه مهال په هند کي



د نبي لوري علامه حبیبي ، علامه رشاد ، عبدالباري جهاني او ناست استاد بېنوا ۱۳۵۸ ش

پیل سوې وه چې ارواښاد استاد په هند کې و. دغه ډگرې د جامعه اردو له خوا هغه کسانو ته ور کول کېدې چې په دغه برخه کې به یې ځانگړې وړتیا او لیاقت ښودی. جالبه خو دا ده چې د دغه ویاړ په اړه د (دقیق کار او کس) خبره هم اړینه او ورسره تړلې وه".

علامه ﷺ هیواد ته د راستنېدو سره سم دستي د افغانستان د یوازني علمي ادبي مرکز پښتو ټولنې له خوا د دغې ټولنې مسلکي غړیتوب ته وبلل سو هغه مهال د پښتو ټولنې رئیس ارواښاد استاد گل پاچا الفت د خپلې بلنې په یوه برخه کې ورته لیکي:

"... له تاسو څخه په ډېر احترام امتزاج کوم چې تاسو پښتو ټولنې ته په رسمي ډول راسئ او د دغې مؤسسې په تقویه کولو کې برخه واخلئ!...".

په ۱۳۳۵ ل کال د پښتو ټولنې علمي غړی سو او پسله یوه کاله د دغې ټولنې مرستیال وټاکل سو. په ۱۳۳۶ ل کال د علامه بابا لومړی مغتنم اثر "لودي پښتانه" له چاپه راووت. له ۱۳۳۷ ل کاله راهسې د پورتنۍ دندې تر څنگ د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو په پوهنځي کې د استادۍ دنده هم ورته سپارل سوې وه.

د ۱۳۴۱ ل کال له پیله څخه علامه بابا ﷺ د پخواني شوروي (اوسنۍ روسیې) د بترزبورگ (پخواني لیننگراد) د ختیځ پېژندني په انستیتیوت کې د پښتو ځانگې د استاد په توگه وټاکل سو.

د ښوونې تر څنگ یې د روسي ژبې زده کړې ته لیځي راونغاښتې، دوه زره روسي ملتونه یې پښتو ته راواړول، د پورتني انستیتیوټ رئیس پروفیسر ماکسیم نیکولا یویچ بگلیوبوف د علامه بابا ﷺ د کار په باب داسي لیکي:

"ښاغلي پروفیسر رشاد په ۱۹۶۴ (۱۳۴۴) کال کې خپل ډېر ارزښتمن او علمي اثر "د روسي او افغاني (پښتو) متلو علمي پرتله" بشپړ کړ چې چاپ به یې پر موږ نېکمرغه ژړی وي".

په ۱۳۴۴ ل کال کې بیرته هیواد ته راستون سو او د کابل پوهنتون پوهندوی علمي رتبه یې دفاع کړه، په ۱۳۵۰ ل کال کې د پوهنوالی علمي رتبې ته یې ارتقا



علامه رشاد په هغه مېلمستیا کې چې د هند ولسمشر د مېرمنې له خوا د دوی په ویاړ جوړه سوې وه (۱۳۵۴ش)

وکړه او په ۱۳۵۳ ل کال کې يې د پوهاندۍ علمي رتبه تر لاسه کړه . په ۱۳۵۷ ل کال کې جبري تقاعد ورکړل سو . خو د دوی او علمي کړيو او سړيو تر منځ اړيکي پرې نه سوې زموږ کور د يو اکاډميک مرکز او دوی خپله د يوه دايرة المعارف په توګه د هيواد علمي مرجع وه .

په ۱۳۶۲ ل کال کې د هيواد د تر ټولو لوړه علمي رتبه اکاډميسني ورکړل سوه او په ۱۳۸۲ ل کال کې د ولس له خوا د علامه لقب ورته ورکړه سو . دوی د ژوندانه اويا کاله د پښتو ژبې او ادب او د پښتنو د تاريخ په اړه علمي څېړني وکړلې د دوی په څېړنو کې نوښت، ژوروالی، علمي دقت او د مأخذ نقد او بيا کتنه ځانته خاص ځای لري . په دغو ځانګړ تياوو سمبال تر (۱۴۰) زيات آثار يې وکښل چې له هغو څخه ۵۹ اثره چاپ او تر ۸۰ زيات اثره يې تر اوسه ناچاپه پاته دي .

علامه بابا ﷺ نه يوازي عالم او پوه و، هغه درونډ، زړه سواند او پر علمي اصولو ټينګ ښوونکی و، دوی په سوو شاګردان زموږ هيواد او ټولني ته روزلي دي . دوی د علمي څېړنو تر څنګ د پښتو ژبې او لهجو د ځينو مړو او نيمژواندو لغاتو بيا را ژوندي کېدو ته ډېر لېوال و .

علامه بابا د هيواد او سيمي يو لوی ښوواند ، ستر علمي ، فرهنګي ، ټولنيز ، سياسي او ملي شخصيت و . د دوی د سيمه ايز او نړۍ وال شخصيت په اړه د بېلګي په توګه لاندني درې نظره تاسي ته وړاندي کوم :

د استاد خالق رشيد د پورتني ليک په يوه برخه کي لولو :

"تر کومه ځايه چې ما ته معلومه ده، استاد په هند کې د خپلې څواني تر يوې لسيزي زياته موده تېره کړېده، د ده معاصرين تر اوسه په هند کي ژوندي دي، هغه په هند کې د خپلي استوګني پر وخت د اردو ژبې د زده کړې دغه پروګرام (اډوانس ډيپلومه) او سانسکريټ او انګرېزي ژبې پروګرامونه په پارټايم ډول سره بشپړ کړي دي او د خپلي استوګني پر مهال چې په هند کې و لوستي دي . هغه سانسکريټ ناګري ليکدود زده کړ، هغه هم په داسي وخت کي چې په خپله هنديانو له دغه ليک سره زياته لېوالتيا نه درلوده . دوه کاله مخکې په جنوبي امريکا کې د هندي ژبې نړۍ واله کنګره جوړه سوه، په



تکړه ليکوال او مشهور ژورناليست استاد اسحاق نګارګر او علامه رشاد ﷺ

دغې نړۍ واله غونډه کې يو فلم ننداري ته وړاندي سو، چي په هغه کي استاد د لومړني افغان په توګه معرفي سو، چي په هندي ژبه (اصلي هندي، نه اردو) باندي پوهېده، د دغه فلم له پاره اړين اسناد او مواد او د استاد عکسونه ما برابر کړي وو، په دغه فلم کي زما مرکه د استاد په اړه د کنګرې (١٥٠٠) تنو غړو ته واورول سوه. د کنګرې غړو چي کله د استاد هغه انځور چي د ګوربت مجلې پر پښتي چاپ سوی و د لوی تالار په لويه پرده باندي وليد په يوه ږغ سره له هري خوا د (مهان ګرو) (لوی ښوونکی) چغې او ارادتونه څرګند او راپور ته سول".

په دهره دون کي د غازي سردار ايوب خان لمسی چي بلقيس نومېږي او په خپله کورنۍ کي په (بې کې) مور باندي مشهوره ده استاد رشاد يې ښه پېژاند. هغې د خپلو خبرو په ترڅ کي دا خبره هم موږ ته وکړه چي:

"رشاد صاحب به چي کله اله آباد ته راتلی، موږ ته به يې ويل چي په ډيلي کي انګرېزي، اردو او سانسکريټ ژبې لولم".

د روسيې (پخواني شوروي اتحاد) د پيترزبورګ د ختيځ پېژندني د انستيتوت رئيس پورفيسر ماکسيم نيکولا يويچ بګليوبوف د علامه بابا رحمه الله په باب ليکي:

"... پروفيسر عبدالشکور رشاد زموږ تر ټولو ټکل او تصور ډېر لوړ پوهاند، مجرب او مسلکي استاد دی چي د دې انستيتيوټ د علمي غړو، استادانو او محصلينو په منځ کي د ځانګړي درناوي او ميني څښتن و...".

د جاپان د لرغون پېژندني د افغاني برخي د کمېټې غړی شاغلی ريوجي سوګانوما کله چي په (٢٠٠٠) کال کي افغانستان ته راغلی و د علامه بابا رحمه الله سره يې دوه پلا وليده، د علامه بابا رحمه الله په اړه وايي

"... رشاد سين سې (استاد رشاد) د بوديزم او ختيځ تاريخ په باب دوني ژور او بشپړ معلومات درلوده، چي ما د لومړي ځل له پاره اوريدل، زه د دوی سره په مجلس کي په خپله حيرانتيا کي ډوب، ډوب وم".

علامه بابا رحمه الله پوره يو کال وړاندي د ١٣٨٣ ل کال د لېندۍ پر ١١ مه د دې فاني نړۍ سره مخه ښه وکړه.

د دوی د مړيني سره د پښتنو د ادب او فرهنګ يو لوی او غښتلی برج داسي ونړېد چي بيا به يې زمانه په ډېره موده د جوړېدو وس ونه لري.

د دوی د مړيني سره د پښتنانه په وير ژړلي کور کي د يوه خورا درانه غم کمبله هواره سوه، ټول افغانان او شاوخوا سيمي په غم زنګېدلې، هري خوا ته د اوښکو بارانونه اورېدل او د آهونو لوخړې جګېدلې، ځمکي او اسمان د پښتنو پر دې بده ورځ ژړل.

په پای کي د علامه بابا رحمه الله پاک روح ته په دعا سره، د دوی د علمي، ادبي، تاريخي، فرهنګي، ټولنيزي او سياسي شتمنۍ رڼا او ښکلا د هيواد پر ټولو فرهنګيانو، اديبانو، څېړونکو او د ادب پر مينه والو خپره غواړم.



د پښتو اکاډمۍ رئيس علامه رشاد ته د تحفې وړاندي کولو پر مهال

محمدمعصوم هوتک/کاناډا

## د متروکو او ارکاییکو لغتونو په ژوندي کولو کي د

# علامه رشاد رحمة الله علیه

## هـــڅي

د پښـــتو ژبـــي او بلـي هـري ژبـي لغـوي زېرمـه د څلورو چینو لـه لاري شتمنه کېدلای سي. یوه یې د متروکـو او ارکـاییکو لغتونـو بېرتـه ژونـدي کـول او یـابول (دودول) دي. نـوري درې یـې لـه لهجـو څخـه رااخیسـتنه. لـه نـورو ژبـو څخـه پورونـه او د نویـو لغتونو جوړونه ده. متروک لغتونه یو وخت په ژبه کي مروج لغتونه وو او پـه ورځنیو محاورو کي کارېدل دي یوښتني ته چي ولـي د زمانې پـه تېرېدلو سره دا لغتونـه لـه اسـتعماله لوېـدلي دي. ژبپوهـان ځـواب ویلای سي. زه یې نه صلاحیت لرم او نـه لایسـنس. خو دومره پوهېږم چي ځیني لغتونه د خپل ژوند پـه اوږدو کي له عمومي ژبي څخه لهجو ته رامحدود سي او بیا پـه ټاکلي جغرافیـایي ساحه کي د کورنیو تـر چوکاټـه پوري د ګوښه کېدلو پروسه تعقیب کړي او وروسـتي له استعماله ولوېږي چي دا نو زما پـه فکر د یـوه لغت (ویـي) مړینـه بایـد وبولـو. د ارکـاییکو او متروکـو لغتونو بیـا ژوندي کـول یـوه ژبنی دنده ده چي ځیني پوهـان یـې پـه مینـه او مسـئولیت سره پـالي. علامـه رشاد رحمه یو له دغو پوهانو څخه و چي د زړو لغتونو راژوندي کول او بیرته رواجول یې د پښـتو ژبـي د غنـا له پاره ګټور کار باله او پـه ټینګه یې پاله

اروانباد استاد ګل پاچا الفت پخپلـه هغـه تقریظ ډوله یادونه کي. چي د پښتو ټولني د رئیس پـه توګـه یې د علامه رشاد مرحوم د (لودي پښتانه) د کتـاب پـه سر کي راغلې ده او پـه هغې کي یې د علامه استاد لـه خوا د زړو لغتونو د کـارولو پـه برخه کـي. سربېره پـر دي چي دا کار یې د افادې د ګرانولو سبب ګڼلی دئ. بیا هم داسـي کښـلي دي: "ښـاغلی رشاد پـه پښـتو لیکلـو کښـی دغسـی لغـاتو تـه زیـات مایـل دی او د پخوانـــو پـــه شـــان ځینـــي زاړه لغـــات پـــه زاړه ډول استعمالوی. دا کار د ځینو مړو یا نیمژواندو لغـاتو د ژوندی کولـو دپـاره ښـه دی او ده پکښـی همدغـه ګټـه لیـدلې ده. زه دا کتـاب یـو درونـد اثـر ګـڼم او خپـل ملګری ته د دغه بریالیتوب تبریک وایم" (۱)

علامـه اسـتاد مرحـوم چـي د متروکـو لغتونـو د ژوندي کولو تلاښ کا وه. حق یـې درلـود. ځکـه کـه دا لغتونه په ورځنیو خبرو اترو او لیکنو کي کـار نـه سـي او له استعماله ولوېږي نو وروسـته مـري. زمـا د خپـل ژوند تجربې راښوولې ده یو زیـات شمېر لغتونـه چـي ما څو کاله وړاندي په لیکنو کي لوستل. اوس یـې ان د خپلو ښاروالو او لهجه والو په لیکنوکي لږ وینم او بېرېږم چي که دا بهیر همداسي روان وي. یـو وخت بـه د دغو لغتونو د پاتا له پاره لاسونه پورته سي

زمـا د مشـاهدې لـه مخـي مـوږ پـه تېـرو دوو دړو

لسیزو کي (بډای) او (موړ) لغات په (شتمن) باندي تري تم کړل. (یرغل) مو په (برید) له منځه یووړ. (ایلچي) مو په (استازي) ورک کړ. (جنګ) مو په (جګړه) وواهه. (وطن) مو په (هیواد) نېستي کړ. (غولی) مو په (انګړ) پایمال کړ. (تاداو) مو په (بنسټ) له بېخه وکیبن. (ربړه) مو په (ستونزه) پسي واخیستله. (لیکه) مو په (کرښه) پاکه کړه. (کوچنیواله) په (وړکتوب) ووژله. (جنګیالی) مو په (جګړه مار) ښخ کړ. (اخته) (بوخت) او (مشغول) مو په (لګیا) الیش کړل. (تلاښ) مو په (هڅه) نفی کړ. (کږنه) مو په (غندنه) محوه کړه. (نجلۍ) مو په (جنۍ) تر پښو لاندي کړه. (کرار) مو په (ورو) وخوړ. (په) مو د (پر) په فتوا مسخه کړ او لا لګیا یو د مسخه کولو او محوه کولو دا بهیر پسي پالو او په ځان نه پوهېږو چي د خپلي ژبي لغوي زېرمه مو د چونګښو د هغه منګوټي په شان ګرزولې ده چي "یوه وراچوو، دوې بیرته ځني غورځي" دغه معادل لغتونه اوس نویو زلمیو ته داسي ښوول کېږي لکه دا چي یوازني او معیاري لغتونه وي او دا نور غیر معیاري. بې خونده او پردي لغتونه. د دغو معادلو لغتونو پر رنګ وخوند زه هیڅ اعتراض نه لرم خو اندېښنه مي د دا نورو لغتونو د مړیني په باب زیاته ده.

د لغتونو مرګ و ژوند یوه طبیعي پېښه ګڼلای سو خو که وساتل سي او له مرګه وژغورل سي د ژبي غنا ورزیاتوي، د مطالبو د افادې وسایل غښتلي کوي او پراخوي یې او د کلام رنګیني ور ډېروي. کاظم خان شیدا که (رنګین الفاظ) د (شعر د پیکر) له پاره (رخت و زېور) بللي دي. زما په خیال د (نثر) د ناوي ښکلا هم ورزیاتولای سي او د دغه راز ښکلا د جلوو تماشه هغه وخت کولای سو، چي د ژبي د کره کولو اخلاص د هغې د سوچه کولو او محدودولو په لېونتوب راځخه الیش نه سي. ما ته چي یو وخت پخپل وطن کي د ژوند کولو نېکمرغي میسره وه نو مي د څه مودې له پاره د پښتو ترجمې په یوه څانګه



د بني لوري هر یو عبدالباري جهاني، محمدمعصوم هوتک، اروانباد علامه رشاد او اروانباد نجیب کندهاري (امریکا _ ۱۹۹۸)

کي کار کاوه هورې مو پارسي مطالب اوخبرونه په پښتو اړول د ژباړې په جريان کي که به د (اظهار نمود. ابراز کرد. وانمود کرد. خاطر نشان ساخت. افزود. خاطر نشان نمود. خاطر نشان کرد. اضافه نمود. اضافه کرد) له رنګارنګو عبارتو سره مخامخ کېدلو. يوازې او يوازې مو په (څرګنده کړه) يا کله کله (زياته کړه) ترجمه کاوه. که به ما يا بل چا د هغه پرځاى (وښوول. وښودل. وويل. ښکاره کړل) عبارت راووړ. د نه معياريتوب په ګناه محکومېدى او په اصطلاح تصحيح کېدى به. ما ته به له خپلي ژبي څخه د لغتونو پر دغه راز ايستلو باندې هم غوسه راتله او هم به خواشينى کېدلم. غوسه به په دې راتله چي د معياريت له علمي مفهوم سره ولي لوبي کېږي او خپه به په دې وم چي زموږ ژبه خو له لويه سره دومره خواره لاهم نه وه. دا خوارې يې اوس ور په پښځه کوو. د ډېرو په عصر کي موږ د انګرېزي ژبي ستهون د انواعو له پاره (ډېره. تېره. سخره. کرکنده. کاڼي. شګه. ګوسه. غرګي ) درلودل اوس د معياريت په هڅه يوازې (تېره يا ډېره) کاروو. دا نور ټول له استعماله ورو ورو لوېږي. ګويا په بدويت کي مو د يوه مفهوم له پاره اووه اته واريانته درلودل خو نن په يوويشتمه پېړۍ کي د متنوعو رنګارنګو لغتونو په پوجي کولو نوکان باسو.

علامه استاد مرحوم له دخيلو لغتونو سره دومره زياته دښمني نه درلوده. متروک لغتونه يې زياتره په شعر کي کارول او په نثر کي يې د دخيلو لغتونو پر کارولو صرفه نه کوله. کوم هدف چي استاد مرحوم په څېړنو کي پاله. لنډه تنګه ژبه د دغه هدف د رسولو تر عهدې نسواى وتلاى. زه پخپله په سر سره له دغه راز ستونزي سره مخامخ سوى يم. ما د پښتنو قومونو د اتنيکي جوړښت په باب يوه څېړنه کړې وه. د هغې په باب په يوه کتاب کي يادونه هم سوې وه. ما غوښتل چي پخپله يوه بله ليکنه کي خپل استدلال ته د پياوړتيا له پاره د دغه کتاب حواله ورکړم خو مشکل مي دا و چي په کتاب کي د کارول سوي ژبي له اسيته نه پوهېدلم چي زما څېړنه پکښې تاييد سوې ده که رد سوې؟ علامه استاد خپله څېړنه په هغه راز ژبه کښله چي استفاده ورڅخه عامه کېدلاى سواى. خو شعر يې بيا د متروکو لغاتو د ژوندي کولو له پاره وسيله ګرزولې وه. دوى به زما په فکر دا حقيقت په پام کي نيولى و چي د لغتونو په بايا و انا (نيا) پسي څراغ وپلټه رااخيستل د ژبي د متخصصينو مشغولا بايد وي. يو لغت چي په يوه ژبه کي کي پېړۍ پېړۍ تېرې کړې وي. بايد د خپلي ژبي مال يې وبلل سي او د افادې په عمليه کي يې په کارولو باندې څوک ونه شرمېږي.

ما ته چي کله د حميد د (نيرنګ عشق) مطالعه ميسره سي. ډېر خوند پر اخلم او د شعري ښايست و رنګينى له خاطره خو يې د پښتو ژبي او پښتنو له پاره ستر وياړ بولم. د ښاغلي استاد صميم دا خبره د زړه له کومي منم چي وايي نيرنګ عشق "زموږ مِلي شاعر عبدالحميد مومند په ډېره خوږه او روانه پښتو مثنوي په خورا لوړ ادبي قوت ژباړلې ده" (۲) خو پر څنګ سمدلاسه دا خبره ذهن ته راسي چي آيا دغه وياړ به د رنګا رنګو دخيلو لغتونو له کارولو پرته زمو پښتنو په نصيب سوى واى؟ او په يوه محدوده و محصوره ژبه به دغه راز شهکار ترېوالو ته د وړاندې کېدو جوګه سوى واى. زه خو وايم هيڅکله نه.

استاد مرحوم به تل تر نويو جوړونو د زړو لغتونو ژوندي کولو ته ترجيح ورکوله. دى د نويو جوړونو په اړتيا پوه و او دا کار يې دننني نړۍ د علمي پرمختګونو او ورسره سم يې د نويو ساينسي او سياسي اصطلاحاتو د منځ ته راتلو د بهير د چټکتيا له خاطره يو ژبنى ضرورت ګاڼه او په دې لاره کي بې اخيستل سوي ګامونه په کلکه څارل. زما په ياد دي يو وخت يې په تيلفوني خبرو کي راته د (چارواکي) نوې جوړه سوې کلمه خورا ډېره وستايله. خو پخپله يې د لغت جوړونو په برخه کي عملي برخه نه اخيستله. مسلمه خبره ده چي په دې برخه کي يې تر بل هر چا هم علمي صلاحيت درلود او هم کفايت. نو دا

کار یې ولې نه کاوه؟ ځکه یې نه کاوه چې استاد مرحوم د ژبنۍ ژبرمي د بډایولو له پاره پخپل علمي و ادبي فعالیت کې ځانته اولویتونه Preiorities ایښې وو او په هغو کې له لهجو څخه د لغتونو اخیستل او بابول او د متروکو لغاتو دوهم وار رواجول د دوی د مثمر کار په سرکې راغلي وو

زما په فکر علامه استاد ﷺ دا بل حقیقت هم په پام کې نیولی و . چې د نړۍ د ژبو د پرمختیا پړاوونه د هري ژبې پخپل ځانګړي علمي و ادبي و تاریخي دریځ پوري تړلي دي ځیني ژبې د پرمختیا په داسي یوه پړاو کې وي چې د لیکدود یووالي او تجانس ته یې تر هر څه وړاندي باید چاره وسنجول سي خو ځیني بیا تر دې پړاو قرنونه وړاندي تیري سوي دي زه خو وایم که یو څوک د خپلي ژبې د لیکدود پر توحید باندي کار ته اړتیا احساس کړي. ځان او خپله ژبه باید ورته سپکه ونه ایسي موږ زیاتره وختونه د دغه راز حقارت ښکار سوي یو او په نتیجه کې مو ادبي و ژبنیو غټبازیو ته لاس اچولی دی د نړۍ له ډېرو پرمختللیو او بډایو ژبو سره مو د سیالۍ او برابرۍ غیر واقعبینانه ادعاوي سر کړي دي په داسي حال کې چې د ژبو پرمختیا او سمبالتیا د هغې د ویونکو له پرمختګ او سمبالښت سره سیده اړه لري د پښتو ژبې د بشپړتیا او کره تیا له پاره د نورو ژبو له تجربو څخه ګټه اخیستل یو معقول او پر ځای عمل دی خو هره تجربه باید د خپلي ژبې د واقعي حالت په پام کې نیولو سره تطبیق سي داسي کالی په واغوستل سي. چې پر تن یې برابر وي دا قانون د ټولنې د ژوندانه په ټولو اړخونو کې جاري و طاري دی که یو ملت پخپله خاوره کې اورګاډی ونه لري او واکمنان یې له نورو دولتو سره د سیالۍ په انګېزه د اټومي پروګرام د تطبیق په سوچ کې سي.

زما په فکر به یې هم ځان خطا ایستلي وي هم نور خپله ژبه هر چاته هم خوږه وي هم اصیله د چاخبره (کارګه وایي زما سپینککیه زویه. جرګی وایي زماپستکیه زویه) په دې لړ کې د پښتو انکشاف و انحطاط. خوږوالی و تریخوالی. ژیړوالی و نرموالی. پرمختګ و شاته تګ. بډایي و نیستي پخپله په پښتنو اړه لري په بل هیچا اړه نه لري د هغې د غنا او بډایۍ له پاره که څوک د پښتو د خپل واقعي حالت له په پام کې نیولو پرته د نړۍ د نورو ډېرو پرمختللیو ژبو د انکشاف پړاوونه د سوټي په زور پرخپله ژبه باندي تطبیقوي. نتیجه به یې هغه راز



جهاني ، علامه رشاد او نجیب کندهاري (امریکا ۱۹۹۸ع)

وي لکه زموږ سوسیالیستانو او سویتیستانوچي د افغاني ټولني د وړاندي ببولو له یاره د پخواني شوروي اتحاد نسخي ټکي په ټکي عملي کول غوښتل او په نتیجه کي یې هیواد له اوسنیو سیاسي و ټولنیزو مصیبتونو سره مخامخ کړ. د لغت جوړوني خبره باید د ژبي ماهرانو ته پریښوول سي خو په ژبه کي په مروجو دخیلو یا غیر دخیلو اخیسلو ښخیسلو لغاتو باندي باید په دې خندني پلمه لاس ونه وهل سي چي ګویا. دا کار ایرانیان هم کوي. المانیان یې هم . . څکه یې موږ هم باید وکړو ' د هرچا او هري ژبي اولویتونه توپیر سره لري او دا هغه خبره وه چي علامه استاد . . هر وخت پري ټینګار کاوه. په (افغان ولس) نومي مجله کي د دوی له خولې څخه پر (انقلـ سویو خبرو باندي زه هم شهادت ورکوم چي ویلي یې دي . . د نوو لغاتو ضرورت زه هغه وخت احساسوم چي موږ ټولي لهجي راټولي کړي وي او د دې څخه نور مایوس یو چي په لهجو کي نور څه نه دي پاته او یا فرضاً ادب مو ټول دا سي ذکر کړي وي، بیان کړي مو وي. چاپ کړي مو وي. د خلکو په لاس مو ورکړي وي. چي هیڅ نه وي پاته. نو اوس موږ وضعي ته ضرورت لرو. نو تر هغه وخته چي مو دا کار نه وي کړی. د نوي وضعي له پاره قدم اخیستل تقریبا د ژبي پر دغه برخه باندي چي دا په لهجو کي ساتل سوي ده. یوظلم دی' (۳) زه به دومره پر زیات کړم چي له (نوي وضعي) څخه د استاد . . مراد د مروجو لغتونو له پاره وضعه کول دي. نوي ساینسي و فني و علمي اصطلاحات له دې حکمه څخه مستثنا دي

زموږ د منلي استاد پوهاند دوکتور زیار صاحب د خولې خبره ده چي وایي " د لري او بري پښتونخوا یوه سیمه او خپل اوزی را نه پاتي نه دی چي څه له یا سه دوه سوه کتابچي مي پري (۴) ډکي کړي دي. د پښتو وییپانګي دویمه برخه (زړه پانګه یا ارکاییزمونه) څېړاند دوست او استاد صمیم خپاره کړي او نوي پانګه یا نیولوجیزمونه هم ما په یولس زریز سیندګي کي له چاپه راکښلي " (۵). خو د خواشیني خبره دا ده چي دغه ستره زړه پانګه همدا سي لاس نه وهلي په کتاب کي بندي پاته ده او څوک یې د ژوندي کولو او رواجولو هڅه خو پرېږده. د کارولو توصیه لا هم نه کوي. زموږ ډېر زور پر نیولوجیزمونو دی او بس همدا مو د ژبي د کره کېدني تادا او ګرزولی دئ. علامه رشاد . . زړې پانګي ته ډېره پاملرنه کوله په تېره بیا په شعر کي او دا پاملرنه یې یوازي د خپلي لهجي پانګي ته نه وه بلکي د پښتو ټولي لهجي یې په پام کي وې. طبیعي ده چي په دې لړ کي یې د خپلي لهجي زاړه لغتونه ډېر کارولي دي. ما یو وخت په یو شعر کي (دوړدوړ) کلمه استعمال کړي وه. علامه استاد سمدلاسه د عبدالقادر خان خټک دا بیت راته ووایه. چي په هغه کي شاعر د (برېوکی) ویی د کندهاري لهجي د (دوړدوړ) کي له پاره راوړی دئ:

که سفله خښتن د جاه شي په دا څه شو؟
په معنی برېوکی پـورته کړ خسړی

او وریسي یې د دغي کلمي په باب مشرح تفصیل ورکړ او زیاته یې کړه. د عبدالقادرخان خټک په کندهار چاپ دیوان کي دا کلمه (برېوګی) ثبت سوې ده. په پخوانیو خطي نسخو کي ګاف هم د کاف په شکل لیکل کېدلی او د برېوګی په ثبت و ضبط کي دغي قاعدي اغېزه کړي ده. ما ته یې د برېوکی د استعمالولو توصیه هم وکړه

بل وخت یې د (ترمي) او (کوشیر) کلمي راته تشریح کړي او ویې فرمایل. دا کلمي زموږ او ستاسي په کندهاري لهجه کي نه کارېږي. زده یې که او په لیکنه کي یې استعمالوه

زما یقین دئ چي د ژبو د اطلس د برابرولو په باب د ساحوي ریسرچ په ترڅ کي به د سیمه ییزو لغتونو لویه برخه. چي په ټاکلي جغرافیوي محدوده کي ایسار پاته دي. ثبت سوي وي. په دې کي به ډېرداسي لغات هم وي. چي نن یې معادل نیولوجیزمونه کارېږي. کاشکي د دغو لغاتو د څېړېدو له پاره هم هڅي سوي وای او یوازي په




کتابچو کي یې په ثبت بسنه نه واې سوې

په دې ترڅ کي مي يوه بله د يادوني ضمني خبره هم پر زړه باندي راغله او هغه د ژبو د اطلس د برابرولو په برخه کي د يونسکو او افغاني ټيم د کار او فعاليت په باب ده موږ ته دا خبره معلومه ده چي په دغه افغاني ټيم کي يو فعال او هڅاند غړی پوهاند دوکتور زيار و او د ده پر څنګ د ټيم نورو غړو ارواښاد الهام. ډاکټر عبدالرازق پالوال. استاد حبيب الله پښتون زوی جاج، استاد پوهندوی نوراحمد شاکر او استاد بايزيد اڅک هم شامل وو او په مينه و جديت سره يې خپلي څېړني مخ ته بېولې د دې ټيم له غړو څخه له نېکه مرغه دوکتور زيار. ډاکټرپالوال. استاد بايزيد اڅک. استاد پښتون زوی جاج ژوندي دي استاد پوهندوی شاکر په کاناډاکي اوسي په فزيکي لحاظ ژوندی دئ خو له بده مرغه داسي ناروغي په پوري ده چي د رغېدلو اميد يې لږ دئ موږ له دغو ښاغلو څخه ټينګه هيله لرو چي د خپلو کلونو کلونو زيار او کړاو په باب راتلونکي ځوان نسل ته معلومات ورکړي زموږ هيواد د حوادثو او توپانونو مېنه ده خدای مه کړه د دوی ارزښتمن زيار د توپانو څپې له ځانه سره يوته سي او تري تم يې نه کړي او يا سبا يې بل څوک د ځان مال و نه ګڼي

د علامه استاد رشاد [illegible] د ليکني او تدريس په ژبه د ده هر شاګرد او لوستونکی پوهېدی او پوهېږي د ده شعر د زړو او متروکو لغاتونو سره سره هر چا ته خوږ او د پوهېدلو وړ و او دئ د ده په زرګونو شاګردانو کي څوک يو تن لا هم نسي موندلای چي ودې وايي زه د استاد په تشريح او لوست نه پوهېدلم د ده د افادې ستاينه د هرچا پر خوله وه، دا ولي؟ دا ځکه چي د ده ژبه له پښتنانه قامه څخه پردی نه وه له بده مرغه نن پښتانه د هغي ژبي په پوهېدلو کي مشکلات او ستونزي لري. چي د (کره) په نامه ورښوول کېږي

علامه استاد رشاد دي پاک خدای وبخښي او د دوی کار دي تل د پښتنو زلميو د لارې مشال وي



## لمنليکونه

(۱) رشاد ـ عبدالشکور ـ لودي پښتانه ـ (ب) مخ . پښتوټولنه ـ ۱۳۳۲ ش

(۲) د عبدالحميد مومند کليات ـ (پېنځه) مخ ـ دانش خپرندويه ټولنه ـ ۱۳۸۳ ل

(۳) افغان ولس مجله ـ شپږم کال ـ لومړۍ ګڼه ـ ۴۲ مخ. د لمبې مجلې د ۱۳۸۳ ل کال د ۴ ـ ۵ ګڼې په حواله

(۴) دا شمېره په (استاد زيار ـ د پښتني فرهنګ يوځلاند ستوری) نومي اثر. ۱۴۹ مخ کي (۱۰۴) بلل سوې دئ

(۵) افغان ولس مجله ـ شپږم کال لومړۍ ګڼه ـ ۹۹ مخ




علامه رشاد [illegible]

# علامه پوهاند رشاد

## د تاریخ لیکنې په ډګر کې

تر دې مهاله زیات شمېر پوهانو، څېړونکو او لیکوالو د علامه رشاد پر علمي شخصیت لیکنې او څېړنې کړېدي او د څېړنو دا لړۍ لا روانه ده. یو شمېر پوهانو د علامه رشاد تخلیقي اثار څېړلي او په هغو کې یې د نوښت، عقلي ځرک موندلي دي. یو شمېر څېړونکو د استاد ادبي څېړنو ته پام کړی او په هغو کې یې د علامه رشاد خواکمن دریځ جوت کړی دی او همدا شان په ژبپوهنه، کلتورپوهنه، متون پوهنه او د پوهې په نورو ډګرونو کې یې د علامه اکاډمیسن پوهاند رشاد ونډه جوته کړېده. زه په دې لنډه لیکنه کې علامه رشاد د یوه مورخ په توګه را یادوم او ورسره یوځای هغو ځانګړنو ته د درنو لوستونکو پام اړوم چې د معیاري تاریخ لیکنې بنسټیز اړونه دي.

د تاریخي اثارو د پېژندنې او د هغو په اړه د رایې ځرګندونې له پاره تر ټولو لومړنی براو د هغه تاریخي اثر د لیکوال او یا مورخ د ذهنیت او لیدلوري پېژندل او پوهېدل دي چې نوموړی مورخ کومو اندونو او ځانګړو افکارو ته ژمن او یا لږ تر لږه له هغو څخه اغېزمن سوی دی. علامه رشاد هم د نورو مورخینو په څېر لیدلوری او د خپلو تاریخي لیکنو له پاره یې معنوي موډل او ذهني لارښود درلود. هغسې چې استاد رشاد د لوډي پښتانه نومي اثر په سریزه کې لیکي: "په نړۍ کې له لرغونو زمانو دا دود دی چې ملکونه، اولسونه، کامونه، کورنۍ، او حتی شخصیتونه لوړېږي، ځوړېږي، وداڼېږي، وراڼېږي، ورسېږي، واک مومي، بېواکه کېږي، ژوند مومي او محوه کېږي. دا ټولې اوښتنې (تغییرات) خانته سببونه لري. د دغو سببونو پلټنه او ګرووېرنه او د هغو د اغېزو او نتائجو څېړل او ښنل د تاریخ غایه ده"

دا د اسلامي نړۍ تر ټولو ستر مورخ او فیلسوف ابن خلدون نظریه ده. نوموړي په اتمه هجري پېړۍ کې ژوند کاوه. په تونس کې وزېږېدی. بیا یې د ژوند تر ورستیو کلونو د الازهر په پوهنتون کې د الهیاتو، فلسفې او اسلامي تاریخ د استاد په توګه دنده تر سره کول. د ابن خلدون څخه په لسګونو تاریخي، فلسفي او دیني کتابونه په میراث پاته دي. خو د د ابن خلدون مقدمې په نوم اثر نړیوال شهرت ګټلی دی. په دې اثر کې د تاریخ او ټولنپوهنې په تړاو د نوموړي اندونه څپاره سویدي. د ابن خلدون نظریاتو نه یوازې د اسلامي نړۍ د مورخینو پر افکارو اثر ښندلی و، بلکې د نړۍ پر سېلا ببلو فلسفي او تاریخي ذهنیتونو یې داسې اغېزې پرېښې، چې یو شمېر یې متاثره کړي او یو شمېر نورو بیا د خپلو افکارو د تدوین له پاره د منځپانګې تر بریده ورڅخه ګټه پورته کړېده. چې په لوېدیځه نړۍ کې د بېلګې په توګه نامتو ټولنپوه اګسټ کنټ او په ځانګړي ډول د شلمې پېړۍ انګلیسي نامتو مورخ او فیلسوف ارنولډ تاینبي یادولای سو چې په علمي کړیو کې یې د "تمدنونو د انحطاط فیلسوف" په نوم زیات شهرت وګاټه. د ټولنې داېروي وده چې د ابن خلدون له نظریاتو څخه راپیل سوېده په اوس مهاله بېلا بېلو ایزمونو، سیاسي او ټولنیزو مسلکونو کې په یوه یا بل ډول کارول کېږي.

علامه رشاد هم د ابن خلدون نظریو ته ژمن پاته سوی د تاریخ لیکنې هغه مېتود یې کارولی چې رېښې او جرړې یې د ابن خلدون په نظریو کې له ورایه ځرګندي دي.

ډېرو شنونکو د علامه رشاد په اړه دا خبره منلې چې هغه هېڅ یوه کرښه د کاغذ پر مخ نه راکښل څو چې د هغې په اړه به یې باور او ډاډ نه وای حاصل سوی. همدا وینا د استاد علامه رشاد د نورو ټولنیزو علومو تر څنګ

په تاریخي څېړنو کي هم په پوره وړتیا څرګنده ده. د علامه رشاد څخه په زیات شمېر تاریخي لیکنې د ادب او ژبپوهنې په تړاو را پاته دي. چي د بېلګي په توګه. ډیلی د پښتنو په وخت کي سریزه: در باره نظامنامه اکبری و ناظم ان: کوروش خون اشام. د قیصه خوانۍ خونړۍ پېښه. څوارلس کلن غازي حاتم او زیات شمېر نور دا ډول خپاره سوي اثار یادولای سو. خو زما د دي لیکني له پاره د علامه رشاد د نورو تاریخي کتابونو څخه د لودي پښتانه" په نوم تاریخي اثر چي د ۴۲۵ پاڼو په لرلو په هند کي د لودي کورنۍ بشپړ تاریخ دی. او هم مي د یوي بېلګي په توګه د نورو تاریخي مقالو څخه په لس مقالي نومي کتاب کي د دکرلاڼیو پاچاهي کورنۍ د بحث لپاره ټاکلي دي

په تاریخي اثارو کي هغه لیکنه یا کتاب د زیات باور وړ ګرځي چي د تاریخي څېړنو ټول ارونه پکښې کارول سوي وي د دي ارونو څخه یو هم د باوري منابعو او لاسوندونو څخه ګټه اخېستنه ده چي د پېښو د تصدیق او سپیناوي له پاره کارول کېږي علامه رشاد په لودي پښتانه او هم د کرلاڼیو پاچاهي کورنۍ په اړه د هري پېښي او هري ویناله پاره لاس وند وړاندي کړی او هره وینا یې د ماخذ په مرسته د منلو وړ ګرځولي ده د دي ادعا د ثبوت له پاره د لودي پښتانه، تاریخي اثر د متن هره پاڼه لوستونکي ته د ډاډ څرګند لاس وند دی. د بېلګي په توګه په ۷۹ نه اویا یمه پاڼه کي چي د سلطان بهلول د رسېدلو په اړه سرلیک پیل کېږي ورسره سم د بېلا بېلو ماخذونو او لاسوندونو یادونه کوي. د خورشید جهان؛ مرقع افغان: شوکت افغان د اثارو بېلا بېلي پاڼي را یادوي. چي د نوموړي مطلب د کره کولو له پاره تر ټولو ډاډمن اخځونه دي

او دا میتود د لس مقالي نومي اثر په بېلا بېلو برخو کي هم په پوره ځیر تیا کارول سوی دی

د برلاسو تاریخي څېړونکو یوه ځانګړتیا دا ده چي د پېښو پر مهال لیکل سویو اثارو ته پوره پام اړوي او د لومړي لاس منابعو په توګه د هغو اثارو څخه زیاته ګټه پورته کوي چي د پېښي مهال ته نږدې او یا پر یوه مهال وي. پوهاند رشاد هم د برلاسو مورخینو په څېر د لودي پښتانه په اړه زیات هغه اثار او منابع کارولي چي د هغه مهال لیکوالو لیکلي دي. لکه مسالک الممالک (اصطخري)، کتاب الهند (البیروني)، زین الاخبار (عبدالحی ګردیزی)، حدود العالم، تزک بابري (بابر نامه او دخان خان، طبقات ناصري (جوزجاني) او داسي په لسګونو . نور یادولای سو

په تاریخي څېړنو کي یوه بله ستره ځانګړتیا دا ده چي د یوې ادعا له پاره د یوه ماخذ وړاندي کول بس نه دي. لاسبري مورخین د یوه لاسوند پر ځای د ډېرو لاسوندونو پیدا کولو او وړاندي کولو ته پام کوي او زیار باسي چي د خپلي ادعا د سپیناوي له پاره څو ماخذونه وړاندي کړي او یا د یوه ماخذ د تصدیق له پاره نور ماخذونه ونیسي علامه رشاد هم د همدې میتود څخه په لودي پښتانه نومي اثر کي او هم په

لودي پښتانه

عبدالشکور رشاد

تالیف

پښتو ټولنه

۱۳۳۶

د علامه رشاد لومړی چاپي اثر (۱۳۳۶ش)

لس مقالې نومي کتاب کې. کار اخیستی دی. د لودي پښتانه په ۱۴۹ مه پاڼه کې چې د جونپور د ریمه جګړه را یادوي او په لمن لیک کې د هغه مبارک خان سپیناوی کوي چې په دې جګړه کې ښکیل دی. او وایي چې دا د ماخذونو په حواله هغه مبارک خان نه دی چې د مبارک خان لواني په نوم پخوا یاد سوی دی. بلکې دا د مونږ خپلو لودي کورنی. اړوند یو بل مبارک خان دی (پاڼه ۱۴۹ لودي پښتانه)

اکاډمیسن علامه رشاد په هغه مقاله کې چې د کرلانیو پاچاهي تر سرلیک لاندې یې خپره کړېده هم دا میتود کارولی دی. د بېلګې په توګه د کرلاني د نوم څېړلو له پاره بېلابېل لاسوندونه او منابع وړاندې کوي او تر هغه بریده یې د لاسوندنو او اثارو کره کتنه کړېده چې په پر له پسې توګه یې یو ماخذ په بل ماخذ تائید کړی دی. او ان دا چې طباعتي تېروتنو ته یې هم پام کړی او هغه یې یادي کړیدي. لکه چې په لس مقالې نومي اثر په ۳۲ پاڼه کې لیکي د صولت شېر شاهي په ۱۱۴ مخ کې چې سید احمد مرتضی لیکلی او د علیګړ پوهنتون له لوري چاپ شوی دی هلته د تاج خان سره یو ځای بواني لیکل شوی دی. چې دا چاپي تېروتنه ده (پاڼه ۳۲ لس مقالې)

د تاریخ د علمي یون دوه بنسټیز فکتورونه د زمان او مکان یووالی دی. هغه تاریخي پېښه چې زمان او مکان یې څرګند نه وي د بشپړې تاریخي پېښې په توګه نه شمېرل کیږي. د همدې اصل له مخې په ټولو تاریخي اثارو کې د پېښې ځای ښودل او د وخت څرګندتیا تر ټولو لومړی په پام کې نیول کیږي علامه رشاد په لودي پښتانه نومي کتاب کې په پر له پسې توګه دا اصل په پام کې نیولی او د هري پېښې سره یې د وخت سپیناوی کړی او هم یې د سیمې او ځای پېژندل شوني کړیدي. د نوموړي اثر هیڅ یو عنوان او سر لیک بیله څرګندي نښې نه لیدل کیږي او ورسره د پېښې سیمه او ورشو هم جوته سوېده. د بېلګې په توګه په ۱۰۹ پاڼه کې د بهلولپور سرلیک را یادوو. بهلولپور د خزینه الا صفیا په حواله سلطان بهلول ته منسوب دی. په ۹۳۲ هجري کال چې کله بابر مغل د سلطان شهاب الدین غوري ودان شوی ښار سیال کوټ وران کړ نو یې د هغې سیمې او سیدنکي بهلولپور ته ولېږل. د بابر نامې په ۱۲۲ مخ کې لیکل سویدي چې د بهلولپور کلا د چناب د سین پر غاړه پرته ده (۱۰۹ پاڼه. لودي پښتانه)

دا لنډه لیکنه په پوره روښانتیا دا برملا کوي چې علامه رشاد هغسې چې د هېواد د ستر ادیب او نامتو لیکوال په توګه پېژندل سوی دی. د هېواد په تاریخ لیکنه کې یې هم ستر لاس درلود او د تاریخ د یوه عالم په څېر یې هغه تاریخي پېښې. تاریخي کورنی. او یو شمېر تاریخي کسان را پېژندلي چې د هېواد د تاریخ له پاره یې پېژندګلوي اړینه وه او له نیکه مرغه استاد په پوره څېرتیا په تاریخي پاڼو کې د هغو تشو ډکولو ته زیار ایستلی چې د اوسني نسل لپاره یې پوهېدل اړین دي



د علامه رشاد ... یو بل چاپي اثر

د پام وړ یادونه


په دې لنډه لیکنه کې د علامه رشاد لودي پښتانه پښتو ټولنه ۱۳۳۲ او لس مقالې - دولتي مطبعه - ۱۳۲۷ سربېره د لاندې اخځونو څخه هم ګټه اخستل سوېده. چې د الفبا په ترتیب دي

- باوري. رسول د تاریخ او مورخ په اړه لنډې څرګندونې د مقالو ټولګه سلام ټولنه ۲۰۰۲
- ساپی. ضمیر تاریخ چیست؟ پوهنتون کابل ۱۳۵۴
- شفا. شجاع الدین مایه. بعد از هزار و چهارصد سال نشرات زردشتیان ۲۰۰۴
- فروغ السادات. اخضري تطابق عوامل انحطاط دول ابن خلدون دانشگاه تهران ۱۳۷۷
- میر حسین شاه تاریخ نویسی در شرق - پوهنتون کابل - پروګرام ماستری تاریخ ۱۳۲۷

❁ عبدالقدیم پتیال :-

# لودي پښتانه

## د علامه رشاد د تاریخ لیکنې لومړۍ څپرکی

لودي پښتانه نومی تاریخي اثر څکه د علامه رشاد د تاریخ لیکنې لومړی څپرکی بولو چې دا د علامه رشاد بابا د علمي ژوندانه لومړی اثر دی چې د دوی د عمر په ۳۶ کلنۍ کې خپور سوی دی .

کله چې موږ علامه رشاد د ژبپوه ، شاعر ، محقق او څېړونکي تر څنګ د یوه تاریخپوه په نامه هم یادوو ، نو دا څکه چې د دوی د چاپو او ناچاپو آثارو په فهرست کې موږ له ځینو تاریخي آثارو سره هم مخ کېږو او موږ ته دا موقع برابرېږي چې دوی د یوه تاریخپوه په نامه هم یاد کړو .

فاضل استاد اکاډیمسین پوهاند عبدالشکور رشاد بابا تل د تاریخي مسایلو سره یوه ښېله علاقه ښووله او همدغه مینه وه چې دوی په عملي ډول د تاریخ لیکنې په برخه کې زیات کار وکړ او په دغه ډګر کې یې ځیني دقیق او معتبر آثار وکښل . موږ که د علامه بابا د تاریخ لیکنې په برخه کې څېړنه کوو ، نو زما باور دی چې دوی به د یوه ژور ، دقیق او یوه مؤرخ په توګه معرفي کاندو .

(ډیلي د پښتنو په وخت کې) نومی اثر چې د علامه رشاد بابا یوه مغتنمه سریزه لري

لودي پښتانه

عبدالشکور رشاد

تألیف

پښتو ټولنه

۱۳۳۶

د علامه رشاد بابا لومړی چاپي اثر (۱۳۳۶ش)

د هغو پښتنو په باب خورا مستند معلومات وړاندي کوي چي په ډيلي او يا ټول هندوستان کي يې استوګنه لرله، همدغه ډول سوري پښتانه د سوري امپراتورۍ او د هغوی سياسي، نظامي او ټولنيز حالات له محققينو او مورخينو سره ډېره مرسته کولای سي . د ارواښاد علامه رشاد بابا د تاريخي آثارو تر ټولو لويه ځانګړنه دا ده چي دوی په خورا نوو موضوعاتو لاس وواهه چي تر دوی وړاندي په دغه اړه موږ په پښتو کي په دغونه تفصيل سره دغسي آثار نه لرل . په همدې ډول د "سوبهاش چندربوس" د کتاب ژباړه، سريزه، حاشيې او تعليقات، پر افغانستان و هند بريتانوي ځوخبري، د کندهار تاريخي يادداښتونه، د پائي پت قهرمان، ملي قهرمان غازي محمداکبر خان، امان الله شاه غازي، برېښي پښتانه، غازي ايوب خان او ځيني نور آثار هغه تاريخونه دي چي زموږ د تاريخ ليکني يوه تشه ښه پوره را ډکولای سي .

د تاريخ علم يو تفصيلي نوم د زمان او مکان د يووالي بيان دی . دا دوه مفاهيم په حقيقت کي د دې علم بنسټ او هم يې د علمي سته والي اساسي فکټورونه ګڼل سوي دي . تاريخ د خپل اوږد ژوندانه په بهير کي بېلابېل موقفونه درلودلي او يا ورکول سوي دي . د يوې سپېرې ليکني او ساده نکل څخه بيا تر يو عقيدتي مضمون، د پېښو د ساده بيان څخه بيا تر فلسفي يون پوري يې ټولي مرحلې درلودلي دي، خو هغه وخت چي د زمان او مکان مفاهيم د تاريخ په تدوين کي بنسټيز رول ولوباوه بيا نو د يو منل سوي دسپلين په څېر معرفي او خپله لاره يې روښانه کړه . (افغاني شمله، د مقالو ټولګه، ۱۱۲ مخ، د پوهنوال باوري ليکنه) .

مګر له بده مرغه بيا کله کله د ځينو مورخينو لخوا ځينو ساده ليکنو او نکلونو ته خورا منظم کالي وراغوستل سوي وي او ګواکي په دوو ګوتو لمر پټول غواړي، نه خو کوم دسپلين يکښي رامنځته سوی وي او نه د يوې سپېڅلي موخې له پاره کارول سوي وي . موږ په افغانستان کي ځيني داسي تاريخي آثار هم لرو چي په قصدي ډول تېر ايستني پکښي راغلي وي او پر همدغه بنسټ نو زموږ د ولس يوه رښتيني او يوه مورخ ته ستر ګي وزي، چي د دغو رښتينو او پوهو مورخينو په برخه کي موږ بو هم علامه رشاد بابا يادولای سو چي په بشپړ صداقت، سپېڅلتيا او پوهي سره يې د افغانستان او په ځانګړي ډول د پښتنو او د دوی د سيمو ځيني تياره ګوټونه روښانه کړي دي .

پر دې ټولو ښېګڼو سربېره د علامه رشاد بابا د تاريخ ليکني (هستوري ګرافي) ميتود هم د ځانګړي پاملرني وړ دی او په کار ده چي زموږ درانه څېړونکي د دوی پر دغه ميتود هم څېړني وکړي . د دوی د تاريخ ليکني د ميتود يو جوت اړخ دا هم دی چي په مأخذ کي مأخذ، په حاشيه کي حاشيه او يا په اصطلاح په تفصيل کي تفصيل پسي ښوول سوی دی او لوستونکي ته زحمت نه پېښوي چي د يوې پېښي د لا روښانه کولو له پاره بلې مرجع ته مراجعه وکړي . د دوی د دې ميتود لويه ګټه دا ده چي لوستونکي ته سوال نه برابرېږي او د هري احتمالي پوښتني ځواب هم پکښي ويل سوی وي .

(لودي پښتانه) د علامه رشاد بابا لومړی تاريخي اثر دی چي په ۱۳۳۶ لمريز کال کي د پښتو ټولني لخوا په ۴۲۵ مخونو کي خپور سوی دی .

په دغه کتاب کي له کابو او يا بېلابېلو آثارو او منابعو څخه چي په پښتو، پارسو، اردو، هندي، انګرېزي او عربي ژبو ليکل سوي دي، ګټه اخيستل سوې ده .

د کتاب ځيني دايګرامونه او پورتريټونه هم د هغو لوستونکو سره پوره مرسته کولای سي چي غواړي په عملي ډول دغه سيمي ووينې او يا هم د دغو سيمو له جغرافيايي موقعيت سره اشنايي ونه لري .

لوديان چي د پښتني قوم يوه درنه او له وياړه ډکه قبيله ګڼله کېږي او سوونه کلونه يې په هند کي پاچهي کړي دي او ستري، ستري امپراتورۍ يې جوړي کړي دي د پښتون قام يوه ستره برخه تشکيلوي، دغي قبيلې د تاريخ په مختلفو دورو کي خورا لوی، لوی اتلان او غازيان درلودلي دي . د دغي قبيلې په باب د تېرې پېړ و ژبو آثار او کتابونه کښل سوي دي او د دوی يادوني په خورا اتيات او قدر سره سوي دي، مګر له بده مرغه ځونه چي ساپي هغونه په پښتو کي د دغي وياړمني قبيلې په باب څه نه دي ويل سوي، ځيني محدود کتابونه دي چي موږ يې په پښتو کي د دغي قبيلې په باب لرو، مګر د علامه رشاد (لودي پښتانه) د دغي قبيلې د پر مشاهير او اتلان په خورا دقيق او علمي ډول معرفي کوي .

لودي پښتانه نومي اثر په کرونولوژيک ډول د هغو تاريخي پېښو او وقايعو يادونه کوي، چي وخت پر وخت د لوديانو له لوري په هندوستان کي رامنځته سوي دي او دغه ګاه علامه رشاد بابا په خورا ښه علمي اسلوب سره

تر سره کړي دي .

ارواښاد علامه رشاد ﷫ په لودي پښتانه کي لومړی د لودي ټبر په باب د معتمدو او مهمو مأخذونو په وړاندي کولو سره ږغېدلی دی، وروسته يې د لودي او ساميت د نظريې په باب خورا ګټوري څېړني کړي دي بيا يې په عمومي ډول پښتانه او ملتان څېړلي دي چي هلته څنګه کوچېدلي ميشت سوي او څنګه يې د واک چاري په لاس کي اخيستي دي، بيا يې د ملتان د پاچهي حدود معرفي کړي دي او وروسته يې په کرونولوژيک ډول د دغو لاندي لوديانو په باب يادوني کړي دي :

سلطان حميد لودي، شيخ رضي ﷫، سلطان نصر لودي، قرمطيت او ملتان، ابوالفتوح سلطان داودلودي، غازي ملک سلېمان لودي، کوچني داود لودي، ملک محمود لودي، ملک شاهو لودي، شيخ احمد لودي ﷫، سلطان فخرالدين لودي، لوی خان ظفر خان لودي، ملک قطب الدين لودي، دريا خان لودي (دوهم ظفر خان)، سارنګ خان لودي، ملو اقبال خان لودي، عادل خان لودي، ملک خضر لودي، سلطان دولت لودي، اختيار خان لودي، تاتارخان لودي، سلطان شه السلام خان لودي، المتوکل علی الرحمان سلطان بهلول لودي، ابوالمظفر غازي سلطان سکندر لودي، سلطان ابراهيم لودي، سلطان محمود لودي، حميد خان سارنګ خاني، تاتارخان سارنګ خاني، شهزاده تاتارخان لودي، ميابلبن شاهوخېل، شيخ علي سرور لودي ﷫، دوهم شيخ احمد لودي ﷫، شېرخان لودي، محمد خان لودي، احمد خان لودي، اسدالله خان لودي، محمدنور خان لودي، الهداد خان لودي، محمد عبدالحکيم خان، محمدحسن خان، شېرخان مسند عالي دولت خان لودي، قطب خان لودي، شېرخان لودي، سکم خان لودي، هدايت الله خان هدايت، حکيم ثناء الله خان "فراق"، نصرالله خان واصل، صاحبزاده عبدالقيوم، غلام رباني لودي .

موږ که د علامه رشاد بابا د آثارو نيوليک تر نظر تېر کاندو نو ښايي پر ډېرو داسي آثارو مو سترګي ولګېږي چي په هند کي د پښتنو په باب وي، دا څکه چي لومړی خو د علامه رشاد څانګړې مينه وه چي له پښتني قام سره يې لرله او بله دا چي دوی په هند کي ډېره موده استېدلي او هلته يې له ډېر نږدې څخه د پښتنو بېلابېلي قبيلې ليدلي او ډېري پښتني سيمي يې تر نظر تېري کړي دي، څکه نو دوی هغه پښتانه او د هغوی وياړني له ورکي ژغورلي او د هغو په باب يې مفصلي ليکني او ګروېږني کړي دي . دوی د لودي پښتانه د کتاب په سريزه کي د دغه اثر د ليکلو اصلي لامل داسي بيانوي :

"په نړی کي له لرغونو دا دود دی چي ملکونه، اولسونه، کامونه، کورنۍ او حتی شخصيتونه لوړ ېږي، خوړ ېږي، ودانېږي، ورانېږي، لوېږي، وړ ېږي، واک مومي، بېواکه کېږي، ژوند مومي او محوه کېږي .

دا ټولي اوښتني (تغيرات) څانته سببونه لري، د دغو سببو پلټنه او ګروېږنه او د هغو د اغېزو او نتائجو څېړل او شنل د تاريخ غايه ده . د يوناني مؤرخ (تهيوسي ډايډز ۴۷۱ـ۴۰۱ ق م) د دې نظريې پر اساس چي وايي :

"پخوانيو پېښو پوهني ته څکه اړ يو چي د داسي پېښو د بيا پېښېدلو او بېرته راګرځېدلو بشپړ امکان سته" .

بايد ژوندي نسلونه پر دغو سببونو غور وکوي او د هغو په رڼا کي د زماني له غوښتنو سره سم پر مخ وخوځي، څکه نو ما د همدغه فکر له مخي د پښتانه درانه ولس د يوه واړه ټبر د نومياليو حالات سره راغونډ کړل .

دا ټبر (لودي) دی. د دې ټبر مېړنيو زامنو لمړی ځل په ملتان کي نيمه پېړی پاچهي لرله چي د غزني د ستر ټولواک سلطان محمود (۳۸۷ ـ ۴۱۲ هـ) له خوا په (۴۰۱هـ) کال ورانه کړه سوه، بيا يې له نوموړي سلطان سره د اسلام د خپرولو له پاره د هندوستان په غزاوو کي د (لودي ملک سلېمان) تر مشر تابه لاندي د ستايني وړ توري ووهلې .

د غور زمری (سلطان شهاب الدين) چي پر هندوستان لښکري وړ وبهولې هم د لودي ملک محمود تر مشر تابه لاندي د دغه ټبر ډېر توريالي مېړنه پکښې وو . . . (لودي پښتانه، د علامه عبدالشکور رشاد، سريزه، ۱ مخ)" .

علامه رشاد د لودي پښتانه د کتاب په ليکلو د لودي پښتانه په برخه کي يو موثوق مأخذ زيات کړی دی او موږ تر اوسه په پښتو کي د لودي پښتنو د مشاهيرو او د هغوی د حالاتو په باب بل دغسي يو ځايي کتاب نه لرو چي په يوه اثر کي دي بحث وربانديي سوی وي، زما باور دی چي درانه پوهان به په دغه خبره کي راسره موافق وي .



❁ عبدالاحمد محمد یار :-

# د علامه رشاد بابا رحمة الله علیه

## څېړنیزه لار

علامــه ، اکاډمیســن پوهانــد عبدالشکور رشاد بابا په افغانستان کــي د پـوهي او فـرهنگ د سـنگر وروستی مخکښ اتل و چي یو کـال وړانـدي یې د افاقیت پر لور خپل دروند گـام واخیست او دادی تـر ننـه د دغـه سنگر د پاتـه سـر تېرو حلقونـه وچ اود گـروم پـه دښتونـو کي سربداله گرځي .

دا مهـال افغانـانو تـه د دغــه علامه بابا یاد خورا زیات ارزښت لـري دا ځکـه چـي زمـوږ د پـوهي د بابـا یادونــه . پېژندنــه او څلونــه د افغـان فـرهنگ او پـوهي د سـنگر د ځپلو سرتېرو لـه پاره د اروایي ډاډ لامــل کېــږي ، د صــبر ، ثبــات او مقاومت الهامونه او پیغامونـه اوري . د پـوهي او فـرهنگ پـر پـراخ واټ باندي د پرمختگ او بېسارو لاسته راوړنـو نـوي لاري ورتـه پرانسـتل کېږي .

رشـاد پوهنـه یـو خـورا پـراخ اکاډمیـک بحـث دی چـي ښـایي کلونـه کلونـه افغـان فرهنگیـان او څېــړونکي وربانــدي بوخـــت و اوســي . زه دلتــه د علامــه بابــا د لومړي تلین پر مهال یوازي د هغه څېړنیزې لارې ته یوه اشاره غونډي کومه او دا هم د دې له پاره چي نن موږ پر دغه ډگر له یوې غمیزې سره لاس و گرېوان یو .

د لومړي لمر یزې لسیزې په ترڅ کې د افغان فرهنگ پر آسمان باندې د لوی استاد علامه پوهاند عبدالحي حبیبي په نامه د پوهي لمر راوخوت چي وړانگو یې د ډېرو زړونو ته رڼا او د ډېرو مغزونو ته غنا وبخښله . لوی استاد د پوهي پر ډگر د څېړنې یو داسې پوخ بنسټ کېښود چي ساری یې په پرون کي هم نه و او په سبا کي یې هم ځرک نه راته ښکاري او دا هم باید ښکاره سي چي (حبیبي پوهنـه) لا هــم د افغــان پوهــانو پــر اوږو د مسئولیت خورا درنه دنده ده چي تر سره کېده یې ډېر اړین دي خو د دغـه لـوی مسئولیت احسـاس لا ډېر لږ دی .

د څېړنـو دا بهیـر پـه پنځمـه او شپږمه لسیزه کـي اوج تـه ورسېد ، په اوومه لسیزه کـي مخ پر ځوړ تیا سو او د اتمي لسیزي په پیل کـي یې نزولـي قـوس بشپړ تابه تـه نـژدې سو . د نهمـي لسیزي لـه پیل سره سم د پښتو څېړنو پر ډگر د بلا سا وختـه او پـه دري اتیایم کـال کـي د علامـه رشـاد بابـا پـه مړینـه سره د څېړنو کمبله هم وړټوله سوه .

دا چي ولي د افغان فرهنگ پر ډگر د څېړنیز بهیر څپه ختمه سوه ، نو تر ټولو لوی لامل یې څرگند دی چي هغـه پرلـه پسـې تباه کـوونکي جگړه وه چي زموږ هر څـه مـادي او مـانیز سته یې د اور پـه لمبو کـي د نېستي خـوراک کـړه . دغـي تـل سوي او کورنـی اوږدې جگـړې لـه یوې خـوا د څېړنو لـه پـاره د پراخـو امکاناتو زمینه ډېره تنگـه کـړه . له بله پلوه افغان څېړونکي د لوږي له بحران سره مخ سوه او د نس مړولو په منده کي ځني د مغز مړولو هڅه هېره سوه .

دا مهــال چــي دننــه پـــه افغانستان کي د څېړنو بهیر یو مخ پـــه ټپـــه ولاړ دی ، ځینـــي د کـــار ښتنان چي لرو نو هغوی بیا هم د جگـړې لـه بـده شـامته د نـړۍ پـه گـوټ گـوټ کـي سره پاشلي دي ، هغـوی چـــي د پر دېســی لــه ټولــو ناخوالو سره سره بیا هم قلم یو مخ نه غورځوي خو له بده مرغـه چي د

کـار اغېـز يـې لـږ تـر مـوږ پـوري رارسېږي او د مکـاني واټنونـو لـه امله يې د همږغۍ نستوالي زموږ د څېـړنيزي غميـزي لـړۍ لا پسـې اوږدوي .

علامـه رشـاد بابـا د ګوربـت مجلې د ۱۳۷۰ کال په شپږمه ګڼه کې د يوې مرکې پر مهال د څېړنې په اړه ويلي دي :

"تخليـق او تحقيـق د ادب دوې څـانګې دي، دوه وزره دي او پـه همـدغو دوو وزرو بانـدې د ادب مرغه الوزي، لکه څنګه چې تخليق ته ضرورت سته هماغومره تحقيق ته هم سته. مخصوصاً د افغانستان غونـدې مملکـت، مخصوصـاً د افغانـانو غونـدې قومونـه، چـې د هغـوی پـه بـاب خـورا کـم تحقيـق سوی دی او هغه سخت تحقيق تـه ضرورت لري . په دنيا باندې موږ اوس بايـد دا خبـره ومنـو چـې د افغانسـتان مـدنيت، دا (۵۰۰۰) کلن مدنيت څرنګه تېر سوی دی، او موږ څنګه برخه پکښې لرو او دا مـدنيت زمـوږ سـره څومره ارتبـاط لـري. دا ټـول پـه تحقيـق بانـدې کېږي .

زه د تحقيـق ښـه راغلاسـت وايم او هغه کسان چې په تخليقي ادب کـې کـار کـوي، سـتاينه يـې کـوم . امـا تحقيـق يـو شـديد ضـرورت ويـنم، چـې بايـد زمـوږ ځوانان په دې اړه مطالعات وکړي، تحقيقات وکړي، څېړني وکړي، او داسې اثار وليکلی سي چې هغه د پښتنو، د افغانـانو او د افغانستان د وسايلو په تحقيق کې له محققينو سره مرسته وکړي" .

د علامـه رشـاد بابـا پورتنـی يادونـه ځينـو ځوانـانو اوږ پـدلې او هڅه کوي چې عملي يې کړي، او د دې لارښووني پلـي کـول د افغـان فرهنګيانو فرض دی . خو د بـده مرغـه خبـره دا ده چـې بيـا هـم د جګـړې نـاوړو اغېـزو زموږ د هـري منـدې پـه مخکـې ارهډونـه جـوړ کـړي دي او دغـو خنـډونو تـه پـه اشاره علامـه بابا د ښکلا مجلې د ۱۳۸۱ يم کال په دويمه ګڼه کې د مـرکې پـه تـرڅ کـې وايـي چـې : "تحقيـق، منـدو تـړړو، لارښـود استاد، کتابخـانو او نور ډېر څه تـه اړتيا لري" .

خو موږ چې اوسني حالت تـه ګـورو نولـه يـوې خوا خـو زموږ ځوانان هغومره منډې نه وهي لکه څنګه چې يې علامه بابا لارښوونه کـوي. لـه بلـه پلـوه نـه لارښـود اسـتادان سـته او نـه هـم بـډای کتابتونونه چې د څېړنو له پاره اړتيا وړ مواد ولري، پايله يې دا ده چې يا څېړنه نه کېږي او يا چې کېږي نـو څېـړونکي د څېـړنې لـه بيخـي لومړنيو اصولو سره هم بلد نه دي، ځکـه خـو نـو زيـاتره هغـه څـه چـې دلتـه او هلتـه د څېـړنې تـر سرليک لاندې خپرېږي خورا بې ګټې او د ابتذال تر کچې راټيټ دي .

زموږ زياتره ځوان څېړونکي فکر کوي چې علامه رشاد بابا پر څېړنيز کار ټينګار کړی دی، نو هر وچ او لانده چې سره ګډ کړي، دا يې د علامه بابا لارښوونه بللې، په داسې حال کې چې دا سمه خبره نه بر ښني، پوهان يوازې د سپينو پاڼو تورولو ته څېړنه نه وايي، هغوی نه يوازې چې دا کـار اړيـن نـه بـولي بلکې ردوي يې .

موږ کـه غـواړو چـې د علامـه بابـا د لارښـووني لـه مخـې څېـړنې وکړو، نو لومړی خو بايد د څېړنې له اصولو سره اشنايي پيدا کړو او تر ټولو اړينه خبره دا چې د علامـه بابا لـه څېـړنيز سبک او لاري سره ځانونه روږد کړو .

زموږ زيـاتره ځوانـان پـه دغـه ټکـي خبـر دي چـې علامـه بابـا د څېړنو پر مهال له خورا زيات پام څخـه کـار اخيسـت . پـه دې اړه د تېر کال د لېندۍ پر ۱۳ مه د علامـه بابـا د جنـازې د مراسمو پـه ورځ سـر محقق عبـدالله بختـاني آزادی راډيو ته وويل :

". . . . د اسـتاد تحقيـق داسې و چې واقعاً د تحقيق د لغت يـو عملـي شـکل و، يعنـي ځـان حقيقـت تـه رسول و، څـو چـې يوه خبـره ورتـه حقيقـت نـه مالومېـده هغه يې نـه ثبتولـه مثلاً (زه ستا نه روايت کوم او پر دې اکتفا کوم) خو استاد پر دې اکتفا نه کوله، هغه ستا د ليکنې ماخذ تـه هم مراجعـه کولـه، د مأخـذ مأخـذ تـه يـې هـم مراجعـه کولـه، بيـا پـه دې منځ کـه که به يې کومې غلطۍ ته پام سو پر هغه به يې هم انتقاد کاوه" . (تر شنه اسمان لاندې، د علامه بابا په اړه د آزادی راډيـو ځـانګړې خپرونه، ښکلا مجله، ۱۳۸۳ کال، لـړم، لېنـدۍ . پرلـه پسـې ۱۴ مـه ګڼه، ۴۹ مخ) .

د علامـه بابـا د ډېر احتياط پـه اړه لا داسـې يـوه خبـره کېـږي چـې کله به استاد بسم الله شريفه ليکله نو د قرآن عظيم الشان له مخې بـه يې ليکله او له ياده يې نه ليکله. که څه هم دا خبره مبالغه ښکاري، خو

مور ته د علامه بابا د ډېر سخت احتیاط یو پیغام لري او دا ښيي چې دغه لوی استاد د پوهانو تر منځ د پام او دقت په یو سمبول باندي نوم درلود .

له بده مرغه زموږ ځیني په اصطلاح څېړونکي چې ځانونه د علامه بابا مریدان او منونکي هم بولي یوازي پر دې استناد چې علامه بابا، تحقیق اړین بللی نور نو ستر ګي پټې او قلم پور ته کړي، پر هسي بابولالو سر سي چې خپله هم نه پوهېږي چې څه وايي. نو دوی ته ډېره اړینه ده چې د علامه بابا له څېړنیزي لاري سره پوره اشنايي ولري . خو دا کار بیا هلته اسانېدای سي چې د علامه بابا آثار چاپ سي، د ښاغلي اسدالله غضنفر لارښوونه ده چې که موږ غواړو. د علامه بابا لمانځنه او یادونه وکړو. نو تر هر څه اړین د هغه د آثارو چاپ دی، چې تر خلکو ورسېږي . هغوی يې ولولي، او پوه سي چې استاد څومره ژور علمي کار کړی دی .

که څه هم دا ډول وړاندیزونه ډېر وسول، خو له بده مرغه چې تر اوسه هم هیڅ دا کار ونه سوای کړلای، بیا هم د علامه بابا د درنې کورنۍ له خوا دا کار وسو او ځیني آثار يې چاپ کړل او لا هم نیت لري چې نور آثار يې هم چاپ کړي . زه فکر کوم، دا به د روڼاندو افغانانو له پاره بده خبره وي چې د دغو آثارو د چاپ دروند پېټی هم د ده د کورنۍ پر غاړه پاته سي، د ده د کورنۍ دا مېړانه بسیاري ده چې دغه درانه آثار يې له ضایع کېدو ژغورلي دي .

کله چې علامه بابا په پښتو کې د زیات تحقیق وړاندیز کوي، د هغه موخه دا نه ده چې خامخا دي کتابونه او رسالې چاپ سي. مجلو ته دي لیکني وسي، او دې ته دي نور فکر نه کېږي چې دا باید پر یوه اصولي علمي بنسټ ولیکل سي. د دې خبرې د زبات له پاره دلیل بیا هم خپله د علامه بابا څېړنیزه لار ده .

علامه بابا داسي نه کول چې یو کتاب يې لیکه، یا يې یوه لیکنه کوله، نو هغه يې ژر تر ژره چاپوله بلکي تر ډېر غور، تر ممکنه بریده ژور تحقیق او پلټنې وروسته يې خپرولـه . د علامه بابا د زیاترو آثارو د نه چاپ یو دلیل همدغه و . په دې اړه استاد حبیب الله رفیع، علامه بابا ته د بي بي سي راډیو له خوا په یوه ځانګړې سوې ادبي خپرونه (پېلوزي) کي وويل

"دلیلونه يې دوه دي، یو دلیل دا دی، روهي صاحب هم لیکلي دي چې ده دا مناعت درلودی چې کومي اداري ته يې نه ويل چې زما کتاب راچاپ کړي. او دوهم دلیل يې دا و چې استاد ډېر زیات علمي احتیاط کوی، یوه څېړنه چې به يې وکړه، بیا به هم په دې پسي ځار و، چې د دې څېړنې له پاره، نور مواد پیدا کړي او که کومه نیمګړتیا پکښې پاته سوې وي، هغه تر بنه وباسي . پر دې اساس د ده زیات شک او احتیاط د دې باعث سوی چې د ده ګڼ آثار نه دي چاپ سوي، یعني د ده لږ آثار چاپ سوي او ډېر پاته دي او ډېر ګټور آثار يې پاته دي، ډېر له نوسته ډک آثار يې پاته دي" .

همدارنګه په یاده سوې خپرونه کي همهاله ښاغلي زرین انځور هم د دې خبرې پخلی کوي :

" . . . استاد یو ژور او دقیق څېړونکی و او حتی د ده د تحقیق په برخه کي کله کله د تشویش تر بریده د ده بسیاري تحلیل، د زیاتي پاملرني وړ دی . . . " .

(پېلوزي، ښکلا مجله، ۱۳۸۳ کال، لړم، لېندی، پرله پسي ۱۴ مه ګڼه ۵۶ مخ) .

دا ټکی هغه مهال ښه روښانه کېدای سي چې څوک د علامه بابا لاسي آثار وګوري. ما يې ځیني ځیني آثار لیدلي دي، د بېلګې په توګه د ۱۳۸۲ کال په ژمي کي زه له صالح صاحب سره یو ځای د علامه بابا کور ته ورغلی وم، هلته درانه استاد د خپلي ځانګړې او همېشني مهربانۍ له مخي خپلي ځیني لاسي آثار، راته راواخیستل، او د صندلي پر سر يې راته کېښښودل، په دغو آثارو کي یو څلور ټوکیزه اثر (د کندهار تاریخ) و، ما چې کله دا تاریخ وکوت، نو ډېر هېښ ورته پاته سوم، د کتاب تر لیکلو وروسته بیا د هر و دوو کرښو تر منځ دوې، درې کرښي نور په بل رنګ قلمونو لیکل سوي وې . بیا چې ځای تنګ سوی و شاوخوا پر پاڼو سپینو ځایو نور یادښتونه لیکل سوي وو، هلته چې هم نور د لیکلو ځای نه و پاته سوی، نو بیا نوري او نوري پاڼي پوري سرېښ سوي وې او په هغو پاڼو کي هم له ورته سبک څخه کار اخیستل سوی و، ما ته خو يې لا دا اندېښنه پیدا کړه، صالح صاحب ته مي وويل چې یاره استاد خو د

ګور پر غاړه ولاړ دی، نامکنه به وي که دا اثار پاکنویس کړي، دا که هر وخت چاپېدل نو سمونه به یې خورا ستونزمنه سي، اوس مي اوربدلي دي چي دا کتاب د درانه او دقیق څېړونکي ښاغلي محمدمعصول هوتک تر سموني لاندي دی. اوس که دا کتاب چاپ سي نو خورا یو پوخ او تر ډېره له نیمګړ تیاوو په څنګ یو اثر به وي.

کېدای سي پر ما دا نیوکه وسي چي په دې توګه نو د ځوانانو د اثارو د خپراوي د مخنیوي وړاندیز کوم. خو زه وایم چي د علامه بابا غونډي د پخو، زړو او بېساري علمي څېړنو کول خو به دا مهال ناشوني وي، خو په نسبي توګه باید د هغه لاره وڅارو. د استاد لارښوونه دا هم وه چي رهنما استاد باید ولرو. که څه هم رهنما استاد د ځینو ځانګړو څېړنو پر مهال اړین دی، خو زموږ ځوانان په داسي حال کي چي زیاتره یې له رسمي زده کړو څخه پاته دي باید د هري لیکني له پاره که وکولای سي یوه استاد یا لږ تر لږه په موضوع باندي خبر چا ته د سلا مشورې له پاره ورسي.

زموږ د څېړني یوه بله غمیزه تکرار دی، نوې خبره بېخي لږ کېږي، هغه د اروا ښاد محمد صدیق روهي خبره ده چي: "زموږ د اکثرو ځلمو لیکوالو څېړني د ملنګانو کند (ګوډړي) ته ورته دي، تقریباً ټولي ټوټې یې د ګدایي له لاري پیدا کړي او یوه ټوټه یې له بلي سره تناسب نه لري، یو چا په دې برخه کي ډېره ښه خبره کړې ده (زموږ اکثره لیکني له کتابو څخه شروع کېږي او پر کتابو ختمېږي) یو لږ کسان دي چي حاضر سوي دي چي له ټولني څخه اومه مواد راواخلي، د یوې تیوري په رڼا کي یې په منظم ډول ترکیب یا تحلیل کړي. سره له دې چي اکثره لیکني له دغه یا هغه مأخذ څخه اخیستل کېږي، اکثر لیکوال د مأخذ نوم نه ورکوي، او تصور کوي چي د مأخذ یادونه د هغوی پرستیژ یا حیثیت ته صدمه رسوي" (محمدصدیق روهي، د څېړني لارښود، ۴۸مخ).

پر دې بنسټ که د علامه بابا لیکني په غور سره ولوستل سي نو هلته له تکرار سره ډېر لږ مخامخېدلای سو، ان ما خو له غضنفر صاحب څخه واوربدل چي له دغه اړخه د علامه بابا لیکني د ځوانانو له پاره ډېر ښه مثال کېدلای سي او پر دغه ټکي یې ډېر فشار واچاوه چي علامه بابا پخپل ژوند کي یوه تکرار خبره هم نه ده کړې.

خو زموږ بد مرغي دا ده چي زیاتره ځوانان څېړونکي مو لس ځله تکرار سوې خبره بیا بیا راته تکراروي، او د تکرار په بیا او بیا تکرار مو ماغزه راخوري، د ساري په توګه تر لسو په زیاتو سرچینو کي مي دا لوستي دي چي د پښتو لومړنی لنډۍ کیسې (شلېدلي پټه) او (کونډه نجلۍ) په نوم اروا ښاد راحت زاخیلي لیکلي دي او په افغانستان کي علامه حبیبي لومړی لنډه کیسه (د سرو زرو ګنبد) په نامه لیکلې خو په دې تازه شپو ورځو کي مي بیا ولوستل چي ...

په دې وروستیو شپو ورځو کي مي یوه بله په زړه پوري!! څېړنه ولیده، هلته هم څېړونکي د علامه بابا دغي خبري ته په پام سره چي ځوانان باید تحقیق ته زیات پام واړوي، یوه داسي بې سره و بې ښکره لړۍ یې رانښلولې وه چي ګوته په غاښ ورته پاته سوم، هلته یې په پښتو لیکنو کي د پښتو د ځانګړو توررو (ډ، ړ، ږ، ښ، ڼ) کارول زیات کړي وو، البته هم یې د نثر او هم د نظم بېلګي یې ورکړې وې، او په پیل کي خو یې لا دا هیله هم کړې وه چي خدای ﷻ دې وکړي چي ځیني خلک یې د خپلي بېوسۍ په درشل کي را رد نه کړي، خو زه خپله دا ډول بېوسي ډاګیزه کوم او ردوم یې. یوه ملګري مي راته وویل چي دغه ډول (بابولالي) په رد یا کره کتنه نه ارزي، ما ورته وویل چي هیڅ شک نسته چي زما او ستا د رد تر مخه دغه د (رد) د کلمې ټاپه په خپله پر لګېدلې ده خو زموږ بدمرغي دا ده چي اکثره خلک مو له دغو مسایلو سره نا آشنا دي او د دغه ډول لیکنو خاوري یې ستر ګي ور ړندوي. ګمرا کوي یې، ځکه هغوی فکر کوي چي ولا دې ځوان نو شهکار پنځولی دی. نو دا خو زموږ دنده ده چي خلکو ته کره او کوټه ور وښیو.

دا خو د نوو او هغه د چا خبره د خالیو خو په جال کي څېړونکو بدمرغي ده، خو تر دې تېره او لوی کفر دا دی چي په لویو علمي مؤسسو کي مو هم دا حال دی، یوه ورځ مي د افغانستان په علومو اکاډمۍ کي د اکاډمۍ له یوه ډېر

پخواني غړي ښخه پوښتنه وکړه چې آیا دا کابل مجله او ځیني نوري خپروني تاسو یوازي د ځان له پاره چاپوئ؟ ده وویل چې موږ په شرمېږو، بازار ته یې ایستلای نه سو. د ده دا خبره رښتیا وه ځکه کابل مجله، اریانا او نوري مجلې یو مهال په دومره لوړ کیفیت خپرېدلې چې اوس د یوه ډېر غوره او پاخه اخځ په توګه کار ېږي خو نن یې اکاډمي په خپرولو شرمېږي. ځکه نن چې څوک دا مجلې ګوري نو هغه بیا بیا تکرار سوي مسایل بیا تکرار ېږي او په ډېره مبتذله توګه تکرار ېږي.

دا په داسي حال کي ده چې موږ پخپله افغاني ټولنه کي دومره اومه مواد لرو چې د څېړلو او پخولو کار یې هیڅکله هم نه سي خلاصېدلای. خو زموږ څېړونکي داسي فکر کوي چې څېړنه یوازي د چا ژوندلیک لیکل، یا د کومي لیکني یا کتاب د لیکلو نېټه مالومول دي، دا به هم اړین وي خو چې بیا بیا تکرار ېږي، نو د څېړني اعتبار ته تاوان رسوي.

نو د دغي ستونزي د لیري کولو له پاره هم زموږ ځوان څېړونکي د علامه بابا د سبک له ژوري پېژندني ښخه چاره نه لري.

زموږ په نوو خپرونو کي یوه بله ستونزه دا ده چې زیاتره څېړونکي مو د نورو د افکارو په تحلیل او تفسیر کي له سختو اشتباه ګانو سره مخ کېږي او د څېړني اصول موږ ته نه راښیي چې د نورو د عبارتونو په راوړلو کي د هغوی موخو ته کلکه پاملرنه وسي، ځکه دا ډېر پېښېږي چې د رسالې لیکوال د نقل په راوړلو او د مطلب په پوهېدلو کي له لویي اشتباه سره مخ سي(روش تحقیق، دوکتور احمد شلبي، ژباړه محمد شفیق وجدان، ۱ مخ).

دلته هم د علامه بابا د څېړني لار موږ د خپلي موخي منزل ته اسانه رسولای سي.

په څېړنو کي یو میتود (د صلاحیت میتود) په نامه سته هغه دا دی چې د بل هر چا څخه په پټو سترګو منل کېږي، په داسي حال کي چې د څېړني اصول دا لارښوونه کوي چې لیکوال باید د نورو فکرونه د کاڼي کرښه ونه بولي، ځکه ډېري رایې بشپړي نه وي، دی باید د نورو رایي او فکرونه هم سم ولولي، د اصولو په اړه یې سم فکر وکړي، چې څه یې غوره پکښي وموندل، هغه واخلي او ناسم یې رد کړي. خو زیاتره ځوان څېړونکي دغه وړتوب یا نه لري او یا یې هم ور ته پام نه دی. بیا هم د علامه بابا څېړنیزه لار له ښویېدو ښخه زموږ د ژغورني لار ده، په دې اړه ښاغلی محمد معصوم هوتک وایي:

"استاد د خوبیو یوه نمونه وه، دومره ژور تحقیق یې کاوه چې هیڅکله یې د تحقیق کار تر سر نه تېراوه، او د لویو لویو مستشرقینو څېړنو ته به نه تسلیمېدی، کله چې به ده یو موضوع ولیدله، ولو که به د دنیا لوی عالم هم لیکلې وه، ده به خپل علم پر راوستی، همدا علت دی چې د دنیا د ډېرو لویو مستشرقینو غلطۍ ده رااېستلي دي . . . "(علامه بابا ته ځانګړې ښکلا، پرله پسې ۱۴ مه ګڼه، لړم ـ لېندۍ، ۱۳۸۳ ل کال ۵۳ مخ).

خپله د علامه بابا د څېړني لار روښانول هم ډېر کار غواړي ما یوازي څو هغو ټکو ته اشاره وکړه چې دا مهال یې زموږ ځوان څېړونکي په پام کي نیولو سره ځانونه له بېلارۍ څخه ژغورلای سي.

دا هم باید ووایم چې ما د لیکني زغم ته په پام سره د ستونزو یادولو پر مهال د بېلګو له ښوولو ښخه ډډه وکړه، که چیري د دغو ستونزو د ستون په اړه چا باور نه کاوه یا یې نوره روښنایي او دلایل غوښتل نو زه به ان شاء الله بل مهال دا کار څه نا څه په تفصیل او له بېلګو سره وکړم، یا کېدای سي نور څېړونکي دغو ستونزو ته پام وکړي او د اواري په اړه یې خپل خپل نظرونه ولیکي، تر هغه چې د علامه بابا غونډي یوې معقولي، سیده او رڼې لاري ته سمېږو.

سارا بیاباني /سویډن

# علامه پوهاند رشاد

## د دستار سړی

**دا لیکنه په سویډن کي د علامه رشاد بابا د لومړي تلین په سیمینار کي اورول سوې ده . اداره**

هر ولس په خپله ژبه ځرګند یږي
دا مانا دا یې بقا دا یې ارزښت دی
په ادب او په هنر په علم او پوهي
راته پاته له استاده دا ګرانښت دی
یاد به تا کړم درناوی به سي د ژبي
ځکه فرض د پښتني ژبي درنښت دی

درنو مشرانو ، ښاغلو ، آغلو عزیزانو او راغلو درنو مېلمنو !

په داسي حال کي چي د بابا روح دي ښاد وي چي د ده عیني نستوالی د خواشیني وړ دی ، خو بیا هم دا خلا د پوهاند استاد رشاد بابا په لاس روزل سوو نیالګیو او د ټولنیزو شخصیتونو په راټولېدو سره په مادي او معنوي لحاظ ډکه ښکاري او د ده په تل پاته نېکنامه د ویاړ ځای بولم چي دا استاد د علمي رڼا پلوشې د سویډن په مالمو ښار کي خورې او ځلېږي او د دغه درونډ شخصیت د تلین په ویاړ سره د خپلي مورنۍ ژبي درناوی د والا مقام شخصیت پوهاند استاد رشاد بابا په یادولو سره سر ته رسوي او د خپل ولس د پوهي څرګندونه د پوهاند استاد رشاد بابا د پوهني په رڼا کي دنیا ته رسوي .

لکه یو شاعر چي وایي :

مېړني دي چي یادېږي
په سندرو هم په ویر

په دې لړ کي یو هم د پښتو ژبي نامتو ادیب ، لیکوال ، شاعر او ټولنیز شخصیت پوهاند رشاد بابا دی چي د علمي تجربې د درلودلو په وجه یې د یوه فاضل استاد لقب تر لاسه کړی دی .

بابا د هیواد د وتلو پوهانو څخه شمېرل کېږي چي د ده د فضیلت ازانګې تر ډېرو هیوادو پوري رسېدلي دي .

مرحوم رشاد بابا د پښتو ادبیاتو د ودي په لاره کي د لرغوني تاریخ نوم روښانه کړی دی .

علمي ، ادبي ، تاریخي او فلسفي آثار یې خپلو هیوادوالو او د ادب مینه والو ته په ډالۍ کي پرې ایښي دي . دغه د زغم او شجاعت خاوند د عمر تر پایه پوري هم کتاب او هم قلم له ځانه لیري نه کړ چي په یقین سره ویلای سو او باید ووایو چي علامه استاد رشاد د خپلي مورنۍ او د هیواد ملي ژبي ته ډېر چوپړ کړی دی .

هو ! هغه چوپړ چي هیڅکله د هېر ېدو او د سترګو د پټېدو نه دی چي په ځانګړې توګه یې د پښتو ادب له ډېرو تیارو او ورکېدو ژغورلی دی ، له تورو شپو نه یې لکه د سحر ستوری روښانه کړی دی ، له توپاني څپو یې داسي ساتلی دی لکه مور چي خپل بچی له یخنۍ نه پخپله توده غېږه کي ساتي .

استاد د خپل قلم ځلېدونکي پلوشې پخپل پلرني هیواد کي په ډېرو سختو او نه زغمونکو حالاتو کي هم پخپله مورنۍ ژبه باندي خورې وساتلې او لکه امانت یې خپلو بچو هیوادوالو ته وسپارلې . ژبه ده چي د ولس هویت پرې څرګندېږي او د ژبو سیالیو ته برابر یږي .

استاد رشاد بابا پر افغان ولس واقعاً ډېر حق لري تو ځکه دلته نن د دې پوهان ، ادیبان ، شاعران او رښاد څېړونکي استادان راټول سوي دي . چي د رشاد بابا د

ادبي علومو په سمندر باندي رڼا واچوي او زموږ په شان د لوږو خوبونو ليدونکي او د وړوکي قلم لرونکي ترښه د ادب ساحل ته د ورتګ لاره زده کړي او له ليدو او اوريدو نه يې ګټه واخلي ځکه چي پوهاند استاد رشاد بابا د علمي څېړنيزو کارنامو له مخي ځانګړې پېژندګلوي لري .

د استاد رشاد څېړنه څه اسانه خبره نه ده . زما په شان د وړوکي مات ګوډ قلم لرونکي، لکه ځاځکی په دې سمندر کي هېڅ ښکاري هم نه، د سمندر څېړنه به څنګه کوي؟

لويه خبره ده وړه خو نه ده. تا ته ساده ښکاري ساده خو نه ده .

د رشاد بابا هر اړخيزه پېژندګلوي خو هغه کسان کولای سي چي تل د ده سره پاته سوي وي يا يې شاګردان وي او يا يې هم ډېر نژدې قلمي هغه ملګري چي د ده پر لاره روان وي او د ده آثار يې په ډېر غور او دقت سره لوستي وي . له سترګو يې تېر کړي او ذهن ته يې وسپاري . زه پخپله د رشاد بابا له آثارو ډېره ليري او محرومه پاته سوې يم . ما يوازي په مجلو او ورځپاڼو کي د ده ځيني آثار لوستي دي چي د ده خدمتونه مي په ادبي، علمي او تاريخي لحاظ احساس کړي دي .

که څه هم چي خدای بخښلی رشاد بابا زما د خدای بخښلي پلار ډېر نژدې دوست و چي د ده ځيني کتابونه زما د پلار په کتابتون کي مونده کېده، خو کله چي پر هيواد باندي نابېره توپان راغی هر څه تالا ترغه سول . نه راته کتابتون پاته سو نه راته پيوستون .

په دې درې لسيزو کي زه هم لکه د هيواد د نورو وګړو په شان کډه پر سر د ژوندي پاته کېدو او ژوند کولو په هڅه کي ناسمو شرايطو د ستونزو سره لاس او ګرېوان وم او د ژوندیو هيلو په بدرګه تر ننه پوري د بېلتانه په درد کي د پرديسي شپې او ورځي سبا کوو . خو بيا هم تر خپلي وسي د ټولنيزو دردونو د ليکلو او د نه هېرېدو په احساس خپل د مات ګوډ قلم ژبه مي د زړه په وينو لمده ساتلې ده .

معذوره يم چي د ډېر ګران فاضل استاد علامه پوهاند رشاد په آثارو پسي رانه د لټون هڅه نيمګړې پاته سوې ده .

خو بيا هم د دې درنې غونډې په برکت، چي د غمخور صيب له خوا بلل سوې يم . د ځان وياړ يې بولم چي په دې ارزښتناکه غونډه کي ګډون لرم . د غمخور صيب نه د زړه له کومي مننه کوم چي زه يې په ياد وم . او بيا له تاسو ټولو راغلو درنو مېلمنو څخه مننه کوم چي زه مو واورېدم .

په پای کي د اروپا د ټولو افغاني ټولنو نه هيله لرم چي هره يوه ټولنه تر خپلي وسي پوري د اروښاد د چاپ سوو او ناچاپو آثارو د خپراوي هڅي نوري هم ګړندۍ کړي، چي زما په شان بې برخي ځني برخمني سي . او د والا مقام د ټولنيز، علمي شخصيت د آثارو په لوستلو د وياړ جوګه سو .

که خدای کول د ده قيمتي، بې بها آثارو له برکته موږ ته هم د خپلي ژبي د ساتلو او روزلو همت را په برخه سي چي د ده د علمي، ادبي رڼا تر سيوري لاندي وکولای سو چي د چوپړ لايق سو .

## علامه رشاد بابا

په تيتېدو را نه روان وې چي ما تا ته کتل
کر دي د ګلو و پرې اينبي. هيلو شا ته کتل
په توره شپه کي دي ګلونه د رڼا وروزل
ځکه په تا کي حقيقي انسان ځلا ته کتل
په لوږو ځوږو کي دي لاره موږ ته سيخه کړله
تا په فاني دنيا کي هم زموږ بقا ته کتل
تورو لوخړو کي يوازي د قلم ملګريه !
د جنګ توپان کي دي د نسل تمنا ته کتل
تا د قلم ژبه ساتلې وه د زړه په وينو
د وطن عشق له حده تېر تا انتها ته کتل
اې پر وطن، دين او ناموس مين رشاد بابا
تا په هر ګام د خپل ولس د زړه مدعا ته کتل
تا د ادب له سمندر نه ملغلري ايستې
سارا ورځپاڼو مجلو کي ستا وينا ته کتل

احمدصميم

## جرئت

کله چي هغه د خبرو پاڼي راتوی کړې، زما په ستوني کي ږغ زندی سو، په دې وخت کي زه د زغم په اړتيا وپوهېدم.

د ازغو امېل په ګلپاڼو بدل سو، آه او اوه خپله لار ورکړه کړې وه.

د خوبنۍ اوښکو خپل ځان نور په سترګو کي نه سوای تينګولای او لکه د مرغلرو دانې په ګرېوان کي دانه دانه سوې او خبرو خپل جرئت نور د لاسه ورکړی و.

# د ډیورنډ کرښه

ډاکټر عبدالرازق پالوال

ښاغلی افضل خان لالا (ترمخنی وفاقي وزیر، او د پښتنو مشر، د غونډو سالار، ۱۷۱ _ ۱۹۴ مخونه):

"د احمدشاه بابا په دور کښې افغانستان د سیمي تر ټولو لوی او مضبوط طاقت و. په هندوستان کښې موجوده کورنی لوی طاقت مرهټه د احمدشاه بابا له لاسه تالا ترغه سوې وه. خو د احمدشاه بابا نه وروسته د هغه په اولاد کښې هغه تدبر، نظامي قابلیت، او قامي محبوبیت نه و پاتي چي د حکمرانی او په سیمه کښې د خپلي بالادستی د قایم ساتلو له پاره ضروري و. نتیجه دا شوه چي د احمدشاه بابا نه پس دراني سلطنت د لویي اړي ګړي او کورني نفاق سره مخامخ شو. د شاه شجاع او امیر دوست محمد خان تربګنی هر چاته څرګنده وه. سیکهانو او پیرنګیانو دواړو د دغي کمزوری نه فایده اخیستل غوښتل.

خو د پیرنګي وړومبی هدف د افغانستان په خاوره کښې خپله نظامي موجودګي یقیني کول و. د دغه مقصد له پاره هغه له شاه شجاع او رنجیت سنګهسره یوه لوظنامه اوکړه چي په اتحاد ثلاثه مشهوره ده. دغه معاهده په کال ۱۸۳۶ کښې وشوه، او مقصد ئې د سکهانو په کومک افغانستان فتح کول و".

"د هغي نظامي هدف د افغانستان په خاوره کښې پوځي چهاوڼی جوړول وو. تر فارورډ پالیسی Forward Policy لاندي برطانوي پوځونه په ۱۶ اګسټ کال ۱۸۳۹ کابل ته ننوتل. شاه شجاع د افغانستان پر تخت کښېناوه شو. خو اصل اختیارات د سفیر مکناټن په لاس کښې وو. پیرنګي دا وګڼل چي د اصل فارورډ پالیسي اهداف تر لاسه شول. د دغه یقین یې نور هم محکم شو کله چي امیر دوست محمد خان خپل ځان برطانوي پوځونو ته وسپاره، او د قیدي په حیث هند ته واستولی شو. د پیرنګي دواړه مقاصد پوره شول. یو دا چي د شرق خوا ته د رنجیت سنګهد حکومت د خپر پدو مخه اونیوله شوه، او شمال غرب خواته د روس او ایران له خوا د ممکنه نظامي یرغل مخنیوی هم اوشو".

"د دغه وخت نه د افغانستان د امیرانو او برطانوي حکومت نماینده ایسټ انډیا کپمنی East India Company تر منځه او وروسته د تاج برطانوي British Crown سره د معاهدو یوه سلسله پیل شوه چي تفصیل ئې داسي دئ: په کال ۱۸۵۵ کښې د امیر دوست محمد خان سره معاهده بیا په ۱۸۷۵ کښې له امیر دوست محمد خان سره دویمه معاهده، په ۲۶ مي ۱۸۷۹ کښې د امیر یعقوب خان سره د ګندمک

معاهده.له امیر عبدالرحمان خان سره د ۱۴ جون ۱۸۸۰ نه تر ۲۰ جولای ۱۸۸۰ پوري خفیه خط و کتابت چي په هغې کښي د سردار عبدالرحمان افغانستان ته د راتگ او د امیر په حیث د واک تر لاسه کولو د شرایطو فیصله وشوه." (۲۰۰۴، ۱۷۳_۱۷۶).

"په کال ۱۸۹۳ کښي له امیر عبدالرحمان خان سره د ډیورنډ معاهده، د برټش انډیا او روس تر منځه په ۱۳ اگسټ ۱۹۰۷ کښي معاهده، چي د افغانستان په باب اوشوه. له امیر امان الله خان سره پر ۸_اگسټ ۱۹۱۹ معاهده، او بیا د { شاه } امان الله خان سره د ۲۲ نوومبر ۱۹۲۱ معاهده. په دغو معاهدو کښي تر ټولو مهمه خبره دا وه، چي تر هري لوظنامې نه مخکښي به ئې په څه نڅه بانه غیر یقیني حالات پیدا کړل، او یا به ئې په افغانستان کښي نظامي مداخلت وکړ او د خپلي نظامي بالادستي پر اساس به ئې په افغانستان ناوړه شرایط ومنل. موئږ به تفصیلي جاج د ډیورنډ د معاهدې اخلو. ځکه چي له دغي معاهدې سره د برټش انډیا هغه ټول مقاصد سر ته رسېدلي دي د کومو ابتدا چي له فارورډ پالیسي شوې وه. په منځ کښي ئې { د ثبات { Static یا { مخنیوي } Contain پالیسي عملي شوه، او انجام ئې The Three Fold Frontier یعني درې غبرگي سرحد شو چي د ډیورنډ د معاهدې اصلي هدف و. { . . . . } یوه خبره باید په نظر کښي وي او هغه دا چي د ډیورنډ د معاهدې شرطونه له معاهدې نه ډېر مخکښي له امیر عبدالرحمان سره په خط کتابت کښي فیصله شوي وو. د ډیورنډ معاهده خو یو څو نقشې وې چي امیر عبدالرحمان ته ور کړل شوي وې او ور ته ویل شوي وه چي بس پر دغو علاقو باندي صبر قناعت وکړه او له نورو نه لاس ووینځه. { . . . . } په افغانستان کښي د فارورډ پالیسي د ناکامي نه وروسته دوی د خپلي Static یا Contain پالیسي ترمخه { پر اساس باندي } امیر دوست محمد خان په مسوري کښي د خیل قید نه آزاد او د افغانستان تسلیم شده { بگېل } امیر په حیثیت افغانستان ته ولېږه. { . . . . } د ډیورنډ کرښه د علاقه جاتو د قبضه کولو منصوبه نه وه، بلکه په حقیقت کښي د پښتون قوم د طاقت د ماتولو له پاره د ده د ویشلو منصوبه وه. د معاهدې په ۱۱ ارټیکل کښي وایي

"to respect territories of the East India Company, and not to interfere therein".

دا معاهده په داسي حال کښي وشوه چي امیر دوست محمد خان د پیرنگي د بند نه خلاص کړی شوی { نه و } یا په نورو ټکو کښي دغه معاهده د یوه بندي او یو بالادست حکومت تر منځه شوې وه { . . . . } امیر دوست محمد خان یو خودمختار حاکم نه وُ. په دغي معاهدې کښي د افغانستان نه خودمختاري واخیستی شوه، او هم دغه د { ثباتي } Static یا { مخنیوي } Contain پالیسي وړومبی هدف وُ. له امیر دوست محمد خان سره د کال ۱۸۵۷ لوظنامه، په داسي حال کښي وشوه چي ایران پر هرات حمله کړې وه". (خان لال، د ډیورنډ کرښه، ۲۰۰۴: ۱۷۸).

"د امیر دوست محمد خان نه پس د هغه زوی امیر شېر علي خان پر تخت کښېناست. انگریزانو ته ئې د پلار د زماني پر معاهدو د قایم پاته کېدو او دوستانه تعلقاتو د احترام وعده وکړه { ۱ }. خو پیرنگي په بل فکر کښي و. د سیکهانو د حکومت خاتمه شوې وه { ۲ }، او پیرنگي پر هغو ټولو علاقو قابض وُ چي د سیکهانو په قبضه کښي وې. ولي ځنگه چي قبایل د سیکهد حکومت له حدودو نه بهر وو او همېشه د سیکهانو له پاره د ډېري پرېشاني باعث وُ، نو پیرنگي هم دغه غم کاوه، چي په امیر شېرعلیخان او افضل خان دواړو کښي به کوم یو زیات کارآمد وي.

{ . . . . } پیرنگیانو سمدستي د شېرعلیخان انتخاب ته غاړه نه ایښوده. دغه خبري د شېر علي خان په زړه کښي دا تلوسه { اندېښنه } پیدا کړه چي گني پیرنگیان د هغه خلاف دي { ۳ }. له دغه سوبه هغه روس ته نور هم لنډ شو. په دغه دوران کښي د روس یو سفارت د امیر شېرعلیخان دربار ته راغلئ. امیر ور ته په ډېر ورین تندي هر کلي ووایه. پیرنگیانو

سره وېره پیدا شوه، او دوی سمدلاسه د امیر دوست محمد خان د هغه اقرار یاد تازه کړ چې وعده ئې کړې وه چې په افغانستان کښې به یوازې برطانوي نماینده ساتي. امیر شېرعلیخان و دغې ته د رعایت ورکولو نه انکار وکړ، او په دغه وجه په سپتمبر ۱۸۷۸ کښې برطانوي پوځونو یوځل بیا پر افغانستان باندې حمله وکړه. امیر شېرعلیخان د روس نه امداد اخیستو له پاره تاشکند ته روان شو، خو پر لارې وفات شو {۴}."، (۱۸۰: ۲۰۰۴).

"د امیر شېرعلیخان په وفات سره د هغه مشر زوی یعقوب خان د افغانستان امیر شو. پیرنګیانو داسې حالات پیدا کړي وو چې امیر یعقوب خان ئې و دې ته اړ کړ چې له دوی سره د ګندمک پر معاهده باندې دستخط وکړي. په دغه وخت کښې سیاسي حالات داسې وو چې پر افغانستان د برطانوي پوځونو د دویم یرغل نه وروسته قوم د یعقوب خان له ملاتړ نه لاس اخستی او باغي شوی و. برطانوي سفیر کیوګناري وژلی شوی و او په هیواد کښې د برطانوي قبضې خلاف جذبات راپار بدلي وو. لکه چې تر مخه ویلي شوي دي برطانوي حکومت چې هره معاهده کوله، د هغې په نتیجه کښې افغانستان کمزوری کېدی. دغه هر څه تر یوې مربوطې پالیسي لاندې کېدل. د ګندمک معاهده چې له یعقوب خان سره وشوه، په حقیقت کښې د ډیورنډ د معاهدې بنیاد و. د دغې معاهدې څو شقونه ستاسې په خدمت کښې وړاندې کوم:

په ارټیکل نمبر ۱۱ کښې داسې ویلي شوي دي:

His highness the Ameer of Afghanistan and his dependencies agree to conduct his relation with the foreign states in accordance with the advice of the British government.

یعني دا چې امیر به له دباندنیو هیوادونو سره په خپلو اړیکو کښې د برطانوي حکومت د هدایت پابند وي. په ارټیکل ۹ کښې داسې وایي:

In consideration of the renewal of a friendly alliance between the two states which has been secured by the fore going articles. The British government restores to his highness the Ameer and his dependencies the towns of Qandahar and Jalalabad with all the territories now in control of the British forces, except the district of Kurram, Pashin and Sibi. These shall remain in British control, and shall not be considered as permanently severed from the limits of the Afghan state, and the revenues of these districts, after deducting civil administration charges, shall be paid to the Ameer of Kabul. The British government shall retain in its own hands the control of Khyber land the Michini passes, and relations with all the tribes connected with the terrirories.

ترجمه ئې داسې ده:

"د دواړو هیوادونو تر منځه د دوستانه تعلقاتو د تجدید او تړون چې وړاندې ذکر شوي شقونه د هغې تائید او تصدیق کوي، د هغه تر مخه برطانوي حکومت قندهار او جلال آباد او ورسره هغه ټولې علاقې، چې د برطانوي فوجونو په قبضه کښې دي د کابل و امیر ته ورپرېږدي. خو صرف د کورمې، پښین، او سیبي ضلعې له خپله ځانه سره ساتي. دا به په مستقل ډول له افغانستانه شکولي نه شي. د دغو علاقوآمدن به هم د اقتدار عامې اخراجاتو د منها کولو نه پس امیر ته ورکولی شي {د دغو اولسوالیو عواید به، د حکومتي مصارفو له کموني وروسته، به پاته د کابل و امیر ته تأدیه (ورسپارل) کېږي}. برطانوي حکومت به د خیبر او میچیني درې {کوتلونه} هم له ځانه سره ساتي او له قبائلو سره به معاملات هم په خپله خوښه کوي، {چې له سیمې سره اړه لري}". (۱۸۲: ۲۰۰۴).

"پر ۱۴ جون ۱۸۸۰ لیپل ګریفن سردار عبدالرحمان خان ته داسې ولیکل:

"دوسته! د سردار ابراهیم په لاس ستاسې را استولی مکتوب راورسېد. تاسې چې د کومو دوستانه جذباتو څرګندونه کړې وه، په هغې سره پوه یم، او ستاسې د دغې تمنا احترام کوم، چې غواړئ د هند له برطانوي حکومت سره دوستانه اړیکي ولرئ. تاسې چې کوم ځینې وضاحتونه طلب کړي دي، هغه د وایسرای په خدمت کښې کښېښودل شول، او د هغه

له هدایت سره سم ستاسي، د طلب کړي وضاحتونو تفصیل بیانوم:

اول دا چي د کابل د حکمران د خارجه معاملو په باب اختیارات داسي دي چي برطانوي حکومت په افغانستان کښي د خپل ځان نه سیوا د بل هیچا عمل دخل نه مني. دغه خبره باید تاسو ته واضح وي چي د افغانستان حکومت د برطانوي حکومت نه سوا د بل هیچا سره خارجه تعلق نه شي قایمولای. روس او ایران دواړو موږ ته تسلي راکړي ده چي ستاسي تر کنټرول لاندي علاقه کښي به هیڅ مداخلت نه کوي.

دوهمه دا چي د قندهار په باب موږ تاسي ته هیڅ قسم تسلي درکولای نه شو. البته کورمه، سیبي او پښین لکه چي تاسي ته معلومه ده تر برطانوي کنټرول لاندي علاقې دي. هم دغه راز د امیر یعقوب خان سره چي د شمال مغربي سرحدي صوبې په باب کومه معاهده شوې ده هغه به { پر هغې به } خپل حکومت قایم کړي. البته په کابل کښي د برطانوي نژاد نماینده پر ځای د یوه مسلمان نماینده ساتلو ستاسي تجویز موږ ته منظور دی، او ستاسي د دغه خواهش به احترام وشي". (۱۸۴ _ ۱۸۵ مخونه).

د دغه مکتوب په جواب کښي سردار عبدالرحمان د پیرنګي ټول شرطونه اومنل. د خط لنډ غونډي متن ئې داسي دئ:

"زه اقرار کوم چي له دباندنیو هیوادونو سره د تعلق په باب به د برطانوي حکومت سره مشوره کېږي. د افغانستان هغه سرحدات به اومنل شي چي تاسي زما له نیکه امیر دوست محمد خان، سره فیصله کړي دي یا وروسته په معاهدو کښي شامل شوي دي".

د دغه مکتوب په جواب کښي ګریفن داسي ولیکل:

"ستاسي د دوستانه جذباتو د احترام په توګه برطانوي حکومت تاسي ته اجازت درکوي چي په افغانستان کښي خپل اقتدار قایم کړئ. د نن نه برطانوي حکومت تاسي ته د افغانستان د امیر درجه درکوي".

"په دغه سلسله کښي یو څو خبري د پام وړ دي، او غواړم چي ستاسي توجه ورته راواګرځوم:

اول دا چي امیر یعقوب خان ولي دې ته اړ کړای شو چي د اقتدار نه لاس پر سر شي؟

دویم دا چي په سردار عبدالرحمان کښي داسي کومه خوبي وه چي پیرنګي غوښتل چي هغه پر تخت کښېنوي؟ { . . . } بایـد دا وکتـل شـي چـي د برطانوي حکومت اصل مقاصد څه وُ؟ که د دغو سوالونو او اصل ته ورسو، نو جواب ئې آسان دئ. برطانوي حکومت د خپلو نړۍ والو دایمي مفاداتو تر مخه په کال ۱۸۳۹ کښي د افغانستان خاوري ته ننوتي وُ. تر کال ۱۸۹۳ پوري په څلور پنځوس (۵۴) کالو کښي سره له دې چي دوه جنګونه وشول، په زرونو برطانوي فوجیان او پنځه _ شپږ اهم سفارتګران ئې ووژل شول. خو برطانوي حکومت دا اطمینان تر لاسه نه کړای شو، چي د هغه د هندي مستعمرې شمال غربي سرحدات محفوظ دي.

اول فارورډ پالیسي ناکامه شوه بیا { ثباتي { Static یا { مخنیوونې } Contain پالیسي هم په خپله لمن کښي د افغانستان دویم جنګ راووړ. انګرېز په دې فکر کښي وُ چي سره د دې چي د افغانستان واکداران د زړه له اخلاصه د برطانوي حکومت مرسته او ملاتړ کوي، بلکي په بله معنی د برطانوي حکومت نمایندګي کوي. خو بیا هم برطانیه په افغانستان کښي پښه نه شي لګولای. له ډېر فکر نه پس پیرنګي دې نتیجې ته اورسېدو چي په افغانستان کښي اصل قوت امیر نه، بلکي د افغانستان هغه اولس دئ، چي زیات تر قبائلي علاقو نه واخله تر کوچک { کوړک } درې او اچکزو پوري پراته دي { ۵ }. یعني د افغانستان پښتون اولس. له برطانوي حکومت سره دا احساس هم وُ چي د بندوبستئ علاقې پښتانه هم د برطانوي حکومت افغان پالیسي ته د خوښي په سترګه نه ګوري، او کېدای شي چي دوی هم خپل اصل ته رجوع وکړي. پیرنګي چي کله دغسي نتیجې ته ورسېدئ، نو ده د دغه قوت د خورولو بندبینا پیل کړه. په دغه پسمنظر کښي هغه په یوې بلې

پالیسي عمل وکړ، چې ورته { دري لایه سرحد } Three Fold Frontier یعني دري اړخیزه سرحدي پالیسي وئیلي شي { ویل کېږي } ".(خان لال، ۲۰۰۴ : ۱۸۷).

"امیر عبدالرحمان پر ۲۰ جولای ۱۸۸۰ د افغانستان د امیر په حیث واک اختیار تر لاسه کړ. په لره موده کښي ئې د سلطنت حدود پاخه کړل، او د روس مخه ئې هم ونیوله".(۲۰۰۴ : ۱۸۸).

"د هغه پر له پسې کامیابۍ له پیرنگیانو سره دا تلوسه { اند ښنه } پیدا کړه، چې هسي نه امیر دومره مضبوط شي چې د امیر یعقوب خان نه تر لاسه کړی شویو علاقو باندي دعوې وکړي. دغه ځکه ممکنه نه وه چې د گندمک په لوظنامه کښي دا صفا وئیلي شوي دي چې دغه علاقې به له افغانستان نه شوکیدلي { شلېدلي } علاقې نه شي گڼلی. دویمه دا چې د دغو علاقو پر آمدن د افغانستان حق منلئ شوئ و. همدغه وجه وه چې پیرنگي له امیر عبدالرحمان سره د پولي په باب لوظنامه کول ضروري وگڼل.

غرض ئې دا و چې لکه ترمخه مي وویل له یوې خوا پښتانه /افغانان کمزوري کړي او له بلي خوا د گندمک د معاهدې پر اساس تر لاسه کړي علاقې په مستقل ډول په برطانوي حکومت کښي شاملي کړي. پر ۱۲ نوومبر ۱۸۹۳ د سر مارټیمیر ډیورنډ Sir Martimir Durand او امیر عبدالرحمان تر منځه معاهده وشوه. له معاهدې سره د ورکړل شوو نقشو په ذریعه پښتانه پر څلورو برخو وویشل شول.

له آمو نه واخله د ډیورنډ تر کرښي پوري علاقې افغانستان او د امیر عبدالرحمان خان په سلطنت کښي شاملي شوې، د ډیورنډ له کرښي نه واخله تر بند و بستي علاقې پوري قبائلي علاقې د پیرنگي تر پولیټیکل انتظام لاندي شوې. د بلوچستان پښتني سیمي د برټش بلوچستان په نامه تر برطانوي ریزیډینټ لاندي شوې، او د صوبه سرحد، چې موږ ورته شمالي پښتونخوا وایو علاقې براه راست د تاج برطانیه British Crown لاندي شوې. پښتانه داسي پر څلورو ټکړو باندي تقسیم شول چې د ډیورنډ د معاهدې اصلي هدف و".(خان لال، د ډیورنډ کرښه، ۲۰۰۴ : ۱۸۹).

"ما دا ټول جغرافیایي او سیاسي حقایق په خپل تاریخي پس منظر کښي ستاسي په وړاندي صرف د دې له پاره کښېښودل، چې د ډیورنډ د کرښي آئیني، قانوني او اخلاقي حیثیت بر سېره شي. د ډیورنډ د معاهدې مختلف شقونه تر بحث لاندي راوستل هسي د مضمون د طوالت خبره ده. ځکه چې اصل معاهده هغه وه چې د امیر عبدالرحمان سره د هغه د تخت نشینۍ نه وړاندي شوې وه، او په هغې کښي و هغه ته د یو نامزد { نومولي } حکمران درجه ورکړې شوې او په خارجه چارو کښي پابند ساتلئ شوئ و. البته دوه شقونه ئې د توجه وړ دي. په دریمه ماده کښي ویلي شوي دي چې امیر به تر اسماره پوري علاقه او ورسره وادي پخپله قبضه کښي وساتي او د سوات، باجوړ، او چترال نه به لاس اوباسي. داسي هغه مهمي علاقې، چې له گندمک نه پاتي شوي وې، هغه هم له افغانستان نه وشوکولي شوې".(۲۰۰۴ : ۱۸۹).

"حاضرینو! د ډیورنډ کرښه بین الاقوامي سرحد نه و. ځکه چې دا د دري اړخیز سرحد یوه کرښه ده. دانگریز او زار روس تر منځه خو سرحد آمو دریاب و. نور وجوهات ئې دا دي:

اول دا چې دا یوه داسي معاهده ده چې د زبردست له خوا له زیردست سره شوې ده { ځکه نو قانوني او اخلاقي حقانیت او مشروعیت نه لري }. له سردار عبدالرحمان سره چې برطانوي حکومت کوم خط کتابت کړئ او ما ستاسي په خدمت کښي پېش کړئ دئ، د هغې تر مخه امیر عبدالرحمان د پیرنگیانو یو نامزد حکمران و. د افغانستان له امیرانو سره چې څومره معاهدې شوي دي، په هغو کښي واضح ترین شرط دا دئ، چې د افغانستان امیر به په خارجي چارو کښي د برطانوي حکومت د هدایاتو پابند وي. په خارجي چارو کښي پابند سړی څنگه د ملکي { ملي } سرحداتو په هکله معاهده کولای شي؟ حال دا چې دا معاهده هم په خارجي چارو کښي راځي. د

سرحد ټاکلو معامله په بین الاقوامي قانون د خارجه تعلقاتو په ضمن کښې راځي او په دغه معامله کښې امیر عبدالرحمان پابند وُ. په داسې حال کښې چې امیر عبدالرحمان نامزد { نوموليځ } حکمران او په خارجي معاملاتو کښې پابند وُ. د هغه لاسلیک شوې معاهده په هیڅ صورت کښې د قبلولو جوګه نه ده". (خان لالا محمد افضل خان، د ډیورنډ کرښه، ۲۰۰۴: ۱۹۰).

{ خان لال محمد افضل خان داسې وايي چې امیر عبدالرحمان آزاد شخصیت نه وُ. د انګلیسانو تر لاس لاندې مادون او د دوی مأمور وُ. بل دا چې امیر عبدالرحمان د ډیورنډ کرښه د ملت او دولت په صلاح او مشورې سره منلې نه ده، او نه ملت او دولت دغه معاهده کله په وروسته کښې تائید کړې ده } .

"د برطانوي حکومت او زار روس تر منځه اصل سرحد د آمو دریاب وُ. دغه سرحد د انګریزانو او روسانو په شریکه راښکلځ او منلئ وُ. حال دا چې په دغه ټوله معامله کښې د افغانستان د وفد مشري سایمن انګریز کوله، چې د سایمن کمیشن په نامه سره يادېږي. د کمیشن له خوا ټاکلځ شوئ سرحد ظاهره خبره ده، چې د یوه سرحد په موجودګۍ کښې د بل سرحد خبره کول د عقل نه چپه خبره ده. په دغه دلیل سره هم د ډیورنډ کرښه یوه انتظامي کرښه کېدای شي، بین الاقوامي سرحد کېدلای نه شي. دغه انتظامي کرښه صرف د یوه داسې انتظام په غرض راښکلې شوې وه چې غرض ئې بین الاقوامي قانون لاندې کړئ دئ. بله دا چې که پاکستان واقعي د برټش ایندین ګورنمنټ وارث دئ، نو بیا خو په کار دي چې هغه له روس سره د سائمن کمیشن د مقرر کړې سرحد پر اساس په افغانستان کښې هم هغه دعوا وکړي کومه چې پرې پیرنګي کوله. یعني د یوه زبردست هیواد په طور ظاهره خبره ده چې د مختلفو معاهدو پر اساس افغانستان په دباندنیو معاهدو کښې یو آزاد او خودمختاره حکومت نه وُ. نن حالات بدل دي. پاکستان په افغانستان کښې او د افغانستان په خاوره هیڅ قسم دعوی کولای نه شي، او نو ځکه هم د ډیورنډ د معاهدې شکل واضح نه دئ. ریټایرډ لیفټیننټ جنرال حمید ګل په اخبار جنګ کښې د خپل یو کالم { ستون } په ذریعه ډیورنډ لاین د { پاسته، ارتجاعي سرحد } Soft Border په توګه ظاهر کولو کوښښ کړئ دئ". (خان لالا، د ډیورنډ کرښه، ۲۰۰۴: ۱۹۱).

{ دا چې افغانستان به په دباندنیو چارو کښې آزاد نه وي او دغه دعوه انګلیسانو د امیر عبدالرحمان او امیر حبیب الله په وختو کښې کوله، خو د پادشاه امان الله (۱۹۱۹ ـ ۱۹۲۹) چې له انګلیسانو سره ئې دریم د خپلواکۍ جنګ وکړ، وروسته دوی هم کولای نه سوای } .

"په کال ۱۹۴۷ کښې کله چې پاکستان جوړ شو، نو د نورو تبدیلیو سره سره یوه اهمه تبدیلي دا هم راغله چې افغانستان د برطانوي حکومت له معاهدو نه آزاد شو او د خودمختار هیواد په طور ئې تر هر څه نه مخکښې په ۱۹۴۹ کښې پر هغو علاقو باندې خپله دعوی څرګند کړه چې پیرنګیانو تری نه د یو زبردست هیواد په توګه اخیستي وې. په جواب کښې ئې پاکستان دا دلیل وړاندې کړ چې پاکستان د برطانوي حکومت وارث دئ. نو ځکه باید هغه ټولې معاهدې برحای وګڼلې شي چې د پیرنګي او افغانستان تر منځه شوې دي. افغانستان دغه دلیل رد کړئ دئ. د بدل شوو حالاتو تر منځه په کار دا وو چې د پاکستان او افغانستان تر منځه د هغو ټولو معاهدو په قانوني ډول توثیق شوي وای. د پاکستان حکومت ته د دې موقف اهمیت معلوم دئ. ځکه چې پر له پسې ئې کوشش کړئ دئ چې افغانستان د ډیورنډ لاین توثیق ته آماده کړي. خو شپږپنځوس (۵۶) کاله وشول، په افغانستان کښې داسې حکومتونه هم راغلل چې له پاکستان سره ئې دوستانه اړیکې وې، خو دوی په خپل کوشش کښې کله هم کامیاب شوي نه دي. د ډیورنډ کرښه د پښتانه د وجود خلاف یوه ناوړه سازش وُ او هیڅوک دا جرأت کولای نه شي، چې د پښتون /افغان قوم د رضا خلاف کار او کړي. ما ته یاد دي چې په کال ۱۹۷۷ کښې

پاکستان د افغانستان صدر داود خان ته د پاکستان د دورې بلنه ورکړه . صدر دوادخان دغه بلنه قبوله کړه . خو چې کله د دورې تفصیلات هغه ته ولېږل شول، نو د هغه په دوره کښې پېښور ته راتګ هم شامل ؤ . صدر داود خان سمدستي د پاکستان حکومت ته وليکل چې ما د پاکستان دوره قبوله کړې ده او په پاکستان کښې چې هر ځای ته د پاکستان حکومت وايي ورځم . خو پېښور زما په عقيده د پاکستان برخه نه ده . ځکه نو و پېښور ته د ورتګ نه معذرت غواړم . د پاکستان حکومت د صدر داود له دې موقف سره اختلاف ونه کړ" . (خان لالا محمد افضل خان، ۲۰۰۴ : ۱۹۱_۱۹۳) .

"د ډيورنډ لاين انګرېز هم په حقيقت کښې يوه انتظامي کرښه ګڼله . د دې کرښې دواړه طرف ته پر تو افغانانو پښتنو ته بغير د کاغذاتو د تګ راتګ اجازت ؤ . د سړک نه علاوه پښتنو ته تګ راتګ له سره مشکل نه ؤ او پر سړک باندې سرحدي څوکيو هم د لر و بر پښتنو ته افغانستان ته د تګ په باره کښې د پاسپورټ مطالبه کړې نه ده . دوی به په Red Passport افغانستان ته تلل راتلل .

دې کرښې نه يوازې يو قام بلکه يوه قبيله، او يو _ يو خاندان په منځ کښې تقسيم کړی دی د هغويو دا فطري حق دئ چې خپل خانداني، قبيلوي، او قامي وحدت تر لاسه کړي . په يوويشتمه صدۍ کښې ټوله دنيا په يوه عالمي کلي سره بدله شوې ده . ټول يورپ يو شو . يوه سکه ئې خپله کړه ، او د رياستونو { جمهوريتونو } بين الاقوامي سرحدات عملاً له منځه ولاړ { . . . } که د جنوبي ايشيا خلق هم خپله اود خپل راتلونکي نسل له پاره زياته وده او ترقي غواړي، نو د لويو وحدتونو طرف ته به ځي لکه د سارک، ايکو ECO او اسيان په شکل کښې آغاز شوي دي . په دې پس منظر کښې د ډيورنډ کرښې قانوني حيثيت هر څه چې وي { هغه خپل واقعيت بايللئ دئ } . خو دا يو حقيقت دی چې دې کرښې نه يوازې يو قوم بلکې يوه قبيله او يو خاندان پر منځ باندې نيمی کړي دي . فلهذا په دې وجه پر حکومت پاکستان او افغانستان دواړو باندې دا لازمېږي چې سره کښېني او د پښتون /افغان قوم د وحدت لارې چارې د ګفت و شنيد negociation په ذريعه سره راولټوي .

په دې سلسله کښې زه له حکومت پاکستان او افغانستان دواړو نه دا مطالبه کوم، چې د ډيورنډ کرښې دواړو طرفو ته پر تو افغانانو ته بغير د کاغذاتو د تګ راتګ او تجارت آزادي ورکړي . دا به د "قامي وحدت" طرف ته اولنی ګام وي" ،(خان لالا، د ډيورنډ کرښه، ۲۰۰۴ : ۱۹۴) .

## يادوني

**ما په متن کښې دننه ، چيرې چې لازمي وه ، ځيني کرښې د اړتيا له مخې څخه ور زياتي کړې دي ، او څه نور څه به ، چې کميت ئې نسبتاً ډېر دئ دلتهورباندې زيات کم .**

**{۱} د افغانانو په تاريخي معيار سره شېرعلي د افغانستان شاه ؤ ، امير نه ؤ. دا ځکه چې ده له انګليسانو سره د خپل پلار امير دوست محمد خان معاهده منلې نه وه. څنګه چې په ترمخه کښې انګليسانو په افغانستان کښې د صفوفو او مراتبو تلفات ليدلي ول ، نو دوی پخپله و افغانستان ته راتلای نه سوای. ځکه ئې نو و شېرعلي شاه ته بلنه ورکړه چې و راولپنډۍ ته ورسي. ده په جواب کښې ورته وويل چې زه له لسو _ شلو کسانو سره نه درځم ، بل به لا درې زره سپاره زما ملګر تيا کوي ، او د ټولو سپرو او اسانو ، خرڅ به پر تاسي باندي وي. انګليسان هم چار ؤ ناچار د ګران مېلمه دغه مصارف ومنل. نو شېرعلي شاه له درو زرو (۳۰۰۰) سپرو سره ور وخوځېدئ. له خيبره**

ځخه تر راولپنډۍ پورې له نژدو او لیرو سیمو ځخه جوپو _ جوپو خلګو د دۀ و هرکلي ته ځان ور رسولئ وو، او د لارې په اوږدو کښې ئې دی استقبال کړ. دوی و دۀ ته د اسلام د پادشاه په نامه سره رغونه پورته کول او په دواړو لاسو سره ئې سلامونه ورته کول. شېرعلي شاه په لوړ شان او دبدبه سره د انګلیس دربار ته ورغلئ. دۀ له دوی سره ټول هغه شرایط رد کړل چې پلار ئې ورسره منلي ول. په دغو کښې هغه شرط هم ؤ چې خارجي روابط به ئې د انګلیسانو له خوا ځخه اداره کېږي. دۀ د دوی پر ضد باندي له روسانو سره اړیکي ټینګي کړې. دا هغه ځه ول چې انګلیسانو په هیځ توګه سره زغملای نه سوای. ځکه نو دوی هم د شېرعلي شاه د نړوني په لارو چارو پسې سول. لومړی ئې باید دی یوازې کړئ وای. نو تکړه زوی ئې محمدعلي، سپاه سالار، وړور محمدامین، د کندهار والي په یوۀ جنګ کښې دواړه غبرګ ور ووژل. بل وړور ئې محمدشریف ورسره بدورده کړئ ؤ، زوی ئې یعقوب ورته تور کړئ، او په بندي کړئ ئې ؤ چې په بند کښې په عصبي ناروغۍ مبتلاء سوئ ؤ.

{۲} انګلیسانو سیکهان د فرانسوي ماهرانو په وسیله سره وروزل، تنظیم ئې کړل، او مسلح ئې کړل. بیا ئې نو دوی له افغانانو سره داسې وجنګول چې د دوی ښوونه او مرسته ورسره وه. په دغه جنګ سره ئې هم افغانان کمزوري کړل او هم سیکهان دواړۀ. نو د "وېشه او پاشه ئې او حکومت پر کوه" پالیسي Divide and Rule ئې پر وچلوله چې په نتیجه کښې ئې دواړۀ لاندي کړل، او هم دغه ئې غرض ؤ.

{۳} د سید جمال الدین افغاني او نورو مشاورینو په زیار سره پخپله شېرعلي شاه د انګلیسانو مخالف ؤ.

{۴} کله چې شېرعلي شاه له یوۀ روسي هیأت سره و شمال ته ولاړئ ځو له روسانو ځخه ئې د دوهم انګلو_ افغان جنګ له پاره وسله، درسته او نوره مرسته تر لاسه کړې وې، یوۀ ایجنټ په زهرو سره وواژۀ.

{۵} دغه سلسله تر بړېښانو پوري رسېدله چې په شوراوک کښې اوسېدل او د کسې سلسلې غرونو پای دئ.



## مرګ

* چې ځوک مړ سي خلک وایي: "شا ته یې څه پرېښوول؟" او پرښتې وایي: "مخکې یې څه ولېږل". حضرت محمد ﷺ
* مرګ مه غواړئ! حضرت محمد ﷺ
* بې مرګه به ژوند ارزښت نه لاره ځکه له مرګه وېره ده چې دومره یې ژوند غوښتی او خوندور کړی دی.
* مرګ و خوب یو شی دي. "پښتو متل"
* هره زانګو یو ګور دی. "ویکتور هوګو"
* مرګ په ډول و سورنا نه راځي.
* د هیلي مړینه رښتینی مرګ دی.
* ژوند مو چیر ته وپېژندی چې مرګ وپېژنو.
* مرګ ته زوړ و ځوان یو دی. "پښتو متل"

❁ عبدالمالک همت :-

# ابن معتز

**هغه شهزاده چي په سیاست کي یوه ورځ پاچا و او ویې واژه،**
**خو په ادب کي یې نوم تر ننه ژوندی دی**

ابوالعباس عبدالله (۲۴۹ _ ۲۹۴ سپوږمیز) د المعتز عباسي خلیفه زوی او د خلیفه المتوکل لمسی په سامراء کي د اسلام د خلافت په کورنۍ کي وزیږېدی .

د ابن معتز د پلار کیسه هم ډېره جالبه ده له دې امله به لومړی د هغه د پلار کیسه وکړو . ابو عبدالله محمد المعتز په (۲۵۲ س) کال خلیفه سو . ځنګه چي دی پر دربار باندي مسلط و ترکانو ټاکلی و نو له هغو څخه بېزار ېدی . یوه پلا ترک سرداران سره راټول او معتز ته یې وویل چي موږ ته څه راکړه څو موږ صالح بن وصیف ووژنو (صالح هغه سړی و چي د معتز اوږه ځني په رېږد کي وه او سخت ځني بېزار ېدی) . ځنګه چي دغه مهال خزانه تشه وه نو هغه د خپلي شتمني مور څخه څه پیسې وغوښتې، خو مور یې ور نه کړې . له دې امله هغه ترکانو ته د پیسو ورکولو څخه معذرت وغوښت . ترکان په قهر سول د صالح بن وصیف او ابن بغا شرابي سره یې لاس یو کړ او د وسلو سره یې پر دارالخلافه ور ودانګل . معتز په حرمسرای کي و . ترکانو هغه دباندي ور وغوښت . هغه حال ور ته ولېږی چي زه ناروغه یم او دباندي نه سم دروتلای . هغه و چي هغو پر حرمسرای برید وکړ، معتز یې په کشولو کشولو دباندي راوایست او ښه یې وډباوه او بیا یې لمر ته ودراوه او اړ یې ایستی چي له تخته لاس واخلي . دغه مهال یې قاضي راوغوښت او د هغه په موجودیت کي یې خلع (له واکه ګوښه) کړ او بیا یې سامرې ته ولېږی . پنځه ورځي وروسته یې حمام ته بوتی او غسل یې ور کړ . تر غسل وروسته ډېر تږی سو، خو چا اوبه نه ور کولې . کله چي له حمامه راووتی، هغه ته یې د یخي اوبه ور کړې . چي د دغو اوبو د څښلو سره سم مړ سو . تاریخونه وایي چي دا لومړی پاچا دی چي له تندي مري . د معتز مور د هغه په دغسي مړیني سره حواس بایلل او د ترکانو له بیري یې صالح بن وصیف ته ښځي ډېري پیسې (درې لکه دیناره او د زمرتو، یاقوتو او مرغلرو دوې چاینکي) ورکړې . د دغو پیسو په ورکولو سره صالح وویل چي دې کمبختي خپل زوی ته پنځوس زره دیناره ورنه کړل او په ترکانو یې وواژه . په داسي حال کي چي دوني پیسې ورسره وې . ابن وصیف دغه پیسې واخیستې، هغه یې وبخښل او مکې مکرمې ته یې ولېږل چي د المعتمد د واکمنۍ تر مهاله هلته اوسېدل. بیا معتمد راوغوښتل او څه مهال وروسته بیا په سامره کي مړه سوه .

د معتز تر مړیني وروسته عبدالله ته واک ونه رسېد، خو ځنګه چي پاچا زوی و په پاچایي روزنه وروزل سو او ادبیات یې له مشرو او ډېرو نومیالیو پوهانو لکه مبرد او ثعلب او خپل مربي احمد بن

سعید دمشقي او نورو څخه زده کړل .

ابن معتز د ښه شعر او په شعر کې د ښکلو تشبیهاتو له امله ډېر مشهور دی . د شعرونو دیوان یې په (۱۸۹۱ع) کال په مصر کې او بیا په (۱۹۱۳ع) په بیروت کې چاپ سوی دی . ده څو نور کتابونه هم لیکلي دي چې یو یې "کتاب البدیع" دی . دغه کتاب په (۱۹۳۵ع) کال کراچکوفسکي خپور کړ او بیا په (۱۹۴۵ع) کال په مصر کې خپور سو . بل کتاب یې "طبقات الشعراء" دی چې په (۱۹۴۲ع) کال په اروپا کې چاپ سو . دغه راز د ده ځیني رسالې محمدعبدالمنعم خفاجي راټولي کړي او په (۱۹۴۵ع) کال یې خپرې کړي دي . په هغو کې یوه رساله د ابو تمام د شعر د ښېګڼو او بدګڼو په هکله ده چې آمدي د بحتري او ابو تمام تر منځ په پرتلنه کې ګټه ځني اخیستې ده . پر دې سربېره هغه نور کتابونه هم کښلي دي، خو د ده ډېر مهم کتاب "البدیع" دی چې د ده د خپلي لیکني له مخې یې په دوه سوه څلور او یا یم سپوږمیز کال لیکلی دی .

د عربي ژبې ادیب او کره کتونکي احمد امین د خپل کتاب النقد الادبي په (۴۸۰)مخ کې کاږي :

"تر ابن قتیبه وروسته ابن معتز راغی او د بدیع په هکله د کتاب په لیکلو سره یې ادیبوهان متوجه کړل چې د بدیع پوهنه د جاهلیت او د اسلام د لومړیو مهالونو په اشعارو کې په متفرقه توګه موجوده وه او خپل په خپله په شعرونو کې کارېدل . بیا بشار او ابو تمام او تر دوی وروسته نورو ډېر پام ورته واړاوه" .

یو بل عرب ادیب او کره کتونکي ډاکټر محمد مندور هم د النقد المنهجي عند العرب په (۵۰) مخ کې پورتنیو خبرو ته ورته خبري کوي او د ابن معتز د دغه کتاب څخه د ځینو ټکو تر اقتباس وروسته وایي :

"دغه خبري دوه حقیقته په ګوته کوي یو دا چې د بدیع پوهنه ابو تمام نه ده اختراع کړې، بلکي د ده دمخه په قرآن کریم، د رسول الله ﷺ په احادیثو او پخوانیو شاعرانو په شعرونو کې لیدل کېږي، بل دا چې ابو تمام په بدیع پوهنه تر دې اندازې ډېر بوخت و چې ګردسره پر ده باندي غالبه سوه او ده ډېر مهارت پکښې وموند . بدیع پخواني پوهنه ده چې شاعرانو په خپله قریحه او د شعر د طبیعت له مخې په شعر کې کارولې ده" .

مندور د دغه کتاب په (۶۰) مخ کې کاږي :

"د ابن معتز ددغه کتاب کښل د عربي کره کتني په تاریخ کې په دوو لاملونو له اهمیته ډکه او ستره پېښه وه، یو دا چې د بدیع پوهني ځانګړني یې وټاکلې او بل یې د هغه زمانې ته پر نژدې کره کتونکو اغېزه وښندل . چې په دې توګه یې د میتودیکي کره کتني د رامنځته کېدو سره مرسته وکړه . چې دا کار دمخه چا نه و کړی" .

د مختصر المعاني یو شارح احمد امین شیرازي د خپل کتاب آیین بلاغت په (۲۰/۴) مخ کې عبدالله بن معتز د بدیع د علم واضع بولي ، خو غوره دا ده چې هغه د دې علم مدون وبلل سي، ځکه هغه تر ټولو دمخه د بدیع د کتاب په لیکلو سره دغه علم چې پخوا په پاشلي ډول موجود و تدوین او غونډ کړی دی . پخپله عبدالله بن معتز په خپل دغه کتاب کې وایي :

"قد قدمنا فی ابواب کتابنا هذا بعض ماوجدنا فی القرآن و اللغه و احادیث رسول الله ﷺ و کلام الصحابه و الاعراب و غیرهم و اشعار التقدمین من الکلام الذی سماه المحدثون البدیع ، لیعلم ان بشاراً و مسلماً و ابانواس و من تقیلهم وسلک سبیلهم لم یسبقوا الی هذا الفن ، و لکنه کثر فی اشعارهم فعرف فی زمانهم حتی سمی بهذا الاسم فاعرف عنه و دل علیه" . (النقد المنهجي ۵۰ مخ) .

ژباړه : موږ د دې کتاب په بابونو کې هغه څه وړاندي کړل چې موږ په قرآن، عربي ژبه، د رسول ﷺ په احادیثو، د صحابه وو، عربو او نورو په وینا وو او د اولنو په شعرونو کې موندلي دي، کوم چې اوسني ادیبوهان یې بدیع بولي، خو څرګنده سي

چې بشار او مسلم او ابونواس او د دوی غونډي نورو دغه فن نه دی رامنځته کړی، خو د دوی په اشعارو کې خپل په خپله ډېر کارول سوی دی او د دوی په وختو کې وپېژندل سو، په دغه نامه ونومول سو او دغه نوم پر دغه فن پوخ سو. ابن معتز د دغه کتاب په بله برخه کې وايي:

"ماجمع قبلی فنون البدیع احد ولا سبقنی الی تألیفه مؤلف" (آیین بلاغت ۴/ ۲۰) مخ.

تر ما دمخه چا د بدیع فنون نه وه راټول کړي او نه چا تر ما دمخه په دې کله څه لیکلي وه.

ادبپوهان وايي چې ابن معتز په دغه کتاب کې یوازي اوولس بدیعي محسنه راغونډ کړي وه. بیا د هغه همهاله قدامه بن جعفر پر هغو باندي دیارلس نور زیات کړل او بیا نورو دغه شمېره تر (۳۱۰) پوري ورسول.

د ابن معتز د دغسي پوهي او کمال له امله وو چې د دولت وزیرانو او لیکوالانو خار ځني خوړی او ځني بېربدل، ځکه یې نو ده ته خلافت ور نه کړ چې نه چې د دوی لاسونه له آزادی او خپلو رایو له تر سره کولو لنډ کړي. نو یې مقتدر چې ډېر کوچنی (دیارلس کلن) و خلیفه وټاکی. څه مهال وروسته ډېر غټ اړودوړ جوړ سو. په دې منځ کې یو ستر ادیب او لیکوال محمد بن داود بن جراح راپاڅېد او پوهان، لیکوالان او قاضیان یې راغونډ کړل. دوی په ټولو مقتدر له خلافت څخه گوښه کړ او غوښتل یې چې ابن معتز خلیفه کړي. کله چې دا خبر مقتدر ته ورسېدی عبدالله بن معتز ته یې ډېر شته ولېږل او په دې یې قانع کړ چې خلافت ونه مني. هغه هم هغسي وکړه او د حکومت له منلو څخه یې ډډه وکړه. خو محمد بن داود او ملگرو یې د ښار د مشرانو په گډون د ابن معتز سره بیعت وکړ او د هغه لقب یې (غالب بالله) کښېښود. محمد بن داود یې وزیر وټاکل سو او ابوالمثنی احمد بن یعقوب یې قاضي مقرر کی. وایي چې دغه مهال نامتو تاریخ پوه او مفسر محمد بن جریر طبری له دې موضوع خبر سو، هغه معلومات وکړه چې څوک یې وزیر او قاضي وټاکی خلکو د محمد بن داود او ابوالمثنی نومونه ور ته واخیستل. طبري وویل چې دا کار سم نه راته ښکاري. چا پوښتنه ځني وکړه چې سبب څه دی؟

هغه وویل: کوم کسان چې ټاکل سوي دي لوړ خلک دي، خو د تدبیر خاوندان نه دي او زمانه ډول ډول اوښتونونه لري. ماته د سلطنت د خرابی نخښي تر سترگو کېږي. هغه وچې ابن معتز مقتدر ته حال ولېږی چې ته له دارالحکومت څخه د محمدبن طاهر مانۍ ته ولاړ سه څو زه دارالحکومت ته ورسم. مقتدر او د هغه مریانو او پلویانو چې ولیدل چې کار د دوی له واکه وځي، د ابن معتز پر پلویانو یې برید وکړ.

ابن معتز د خپلو ملگرو سره د یوه سوداگر په کور کې پټ سو، خو ونیول سو او په خفه یې وواژه او د هغه د کور سره په یوه کندواله کې یې ښخ کړ. چې په دې ډول یوه ورځ او یوه شپه خلیفه و. خو څنگه چې یې په علم او ادب کې زیار کښلی او ښکلي شعرونه او ښه کتابونه یې پرې اېښي دي تر ننه یې په دغه علم نوم ژوندی دی او په درناوي یادېږي. خدای تعالي مو دي ښه تر سترگو ښه او بد تر سترگو بد وایسوي او له ابتلا څخه مو دي وساتي.



## بدمرغي

* انسان تر کاڼي کلک تر گل نازک دی.
* په بدمرغی کي دا ښېگڼه سته چې رښتیني دوستان راپېژني.
* انسان په بدمرغی او بې وزلی کي ځان پېژني.
* بدمرغي ورتیا روزي.
* ستره بدمرغي دا ده چې د زغملو نه وي.
* بدمرغي د سوکالي تر څنگ ولاړه ده.
* یوازي بدمرغي ده چې بشپړه وي.
* یوه بدمرغي بله زېږوي.
* په هره بدمرغی کي یوه ښېگڼه هم سته.
* اسمان لیري مځکه سخته.

❁ ژباړه :- عبدالجبار ترنګ

# بهزاد

## یوخارق العاده هروي نقاش



استاد کمال الدین بهزاد د نړۍ یو نوموتی نقاش دی د هرات دغه هنرمند زوی د میناتوری سبك پلار بلل کېږي او په همدې ځانګه کې ځیني پاتـه شاهکارونه یې د یوه ستر او خارق العاده نبوغ څرګندوی دي

د بهزاد د شـهرت څپې یـوازې پـه آسـیا کـې نـه دي بندیواتي، بلکـي د نورو لویـو وچو تـر آسمانونو یې هم ځانونـه رسـولي او ارزښـتناکي و قیمتـي تابلوګـاني یـې د نړیوالو موزیمونو د تالارونو ښکلاوي دي

بهـزاد د میـنـاتوری پـه مکـتـب کـې داسـي انقـلاب او نوښت رامنځتـه کـړ چـي سـتر نـوم یـې د تـاریخ. پېړیـو او عصرونو په اوږدو کې ژوندی و ساتل سو

د بهزاد سبك خپلواك او یوازې پـر ده ولاړ او د ډېرو لږو وړاندنیو هنرمندانو تـر اغیـز لاندې راغلـی دی پـه هر صـورت. د بهـزاد سـبك هـروي ډولـه او د لرغـوني هـرات د بشپړ او پرمختللي هنر نمونه بلل کېږي

بهزاد پـه ځـانګړې توګـه د انسـاني څېرو او د هغـو د اروایي حالاتو په انځورولو کې دومره ځیر ځواك لري چي د ده پـه هممهـالو او وړانـدنیو نقاشـانو کـې ډېـر کـم لیـدل کېږي پـه بله ژبه بهزاد یـوازې څېـره نـه انځـوروي. بلکـي د څېرې تر شا اروا او احـساس هم انځـوروي، پـه داسـي حـال کـې چي تـر ده وړانـدنیو او آن هممهـالو یـې دغـه ټکـي تـه چنداني پاملرنـه نـه کولـه او یـوازې یـې صـورتي نقاشـی تـه پام اړاوه او د څېرو ښکاره کرښې یې انځورولې

بهزاد له صورت څخه حالت ته لاړ او د انساني ماسك تر شا پټ اروایي کیفیتونه یې انځور کړل بهزاد د رنګونو په ګډولو، همږغولو او د سره ورته او ګاونډیو رنګونو تر منځ د هارموني په موندنه کې اعجاز کوي او دغه چاریې آن د اوسـنیو نقاشـانو او هنـر پېژنـدونکو پـه انـد هـم د ستاینې وړ دی لنډه دا چي د رنګونو د همږغولو هنر چي ښایي د نقاشۍ تر ټولو لویه برخه او ښست شمېرل کېږي. د استاد بهزاد پـه آثارو کـې پـه ښـساري توګـه ځلېږي، بـه تېره بیا چي له طبیعت سره بوخت وي، د طبیعت او ښکلو طبیعـي منظـرو پـه انځورونـه کـې خپـل دغـه هنـر یعنـي د رنګونو همږغي خورا ښه خلوي

هغه په خپلو ناسیالو تابلوګانو کې د ونو له ګل څخه نیولې د افق تر رنګ او سپوږمۍ تر خلاندو وړانګو پورې هر څه داسي انځوروي چي سره لـه دې چي ځیني وختونـه رنګونـه نـاطبیعي او د اوسـنیو هنرپېژنـدونکو پـه وینـا ریالیستیك نه وي، خو بیا هم ښکلي دي. آن تر طبیعت لا ښکلي

دلته دا روښانېږي چي د ځینو هنرپېژندونکو په خوله واقعاً د انځور هنر طبیعت دی، خو غوره انځور یې. اوچت او ډېر ښایسته انځور یې بهزاد دغه نظریه پـه خپلو آثارو کې ژوندۍ کړې ده

بهزاد د اپلاتـون پـر خـلاف چي هنـر د طبیعت پیښـه بولي، د "طبیعت د بشپړتیا" په اند دی او لـه همدې امله د

"هنر" د توري بشپړه معنا څاري چې د "غوره هستی" مفهوم لري د دغي لنډکی سريزې په پای کي د لويديځوالو، سترو مورخانو او نوموتو هنرپېژندونکو د ليکنو ځيني هغه برخي راوړم چې د بهزاد د مقام څرك ځني لګېږي

**د بهزاد د هنر په اړه د څېړونکو رايي او نظرونه**

ډاکټره ډيماند -

ډاکټره ډيماند د اسلامي صنايعو په کتاب کي داسي ليکي-

د هرات ښار په ختيځه نقاشۍ کي يو نوی او ځلاند پړاو د سلطان حسين ميرزا (۱۴۶۸-۱۵۰۶م - ۹۱۲ - ۸۷۳ ه) او د ده د مشهور وزير امير علي شېر نوايي - چې خپله هم شاعر، موسيقي پوه او نقاش و- راپيل سو. د دغه پړاو تر ټولو نوموتی نقاش کمال الدين بهزاد هراتی و، چې په (۱۴۴۰م) کي زېږېدلی او د خپل مهال په عجايبو کي شمېرل کېږي

ډيماند د بهزاد د سبك په اړه يوه په زړه پوري شننه کړې او ليکي-

د بهزاد د "خمسهٔ نظامی" او نوري نقاشۍ ښيي چې هنرمند د طبيعت په ليدنه کي ځير او ژور دی او د ځانګړو رنګونو په کارولو سره يې نوښت کړی. همدارنګه په يوه بل ځای کي وايي-

د بهزاد د سبك يوه بله ځانګړتيا د ژوندیو خوځښتونو د کار ظرافت، د اشخاصو د څېرو توپير او له جزياتو څخه تېرېدل دي چې په وروستيو نقاشيو کي يې تر سترګو کېږي. بهزاد په ځانګړې توګه د څېرې په رنګ او د خاصو رنګونو په ګډولو کي له ځانه يو خارق العاده نبوغ ښوولی دی

ډاکټر ذکي محمدحسن -

ډاکټر ذکي محمدحسن د بهزاد په اړه داسي ليکي -

"بهزاد په رنګ آمېزی، رنګ ګډولو او په انځورونو کي د بېلابېلو انساني حالاتو په پوهېدنه، د رنګونو د ځانګړتياوو او ترکيب پېژندنه کي له ځانه لوی مهارت او لاسبری ښوولی، په تېره د ځايونو او طبيعي منظرو په انځورولو کي د اعجاز تر کچې رسېدلی دی

د نقشونو په ښايسته کولو کي يې د رنګونو له ترکيب، ترتيب او ځيرتيا څخه داسي ښکاري چې بهزاد هماغه بشپړ انځورګر دی چې د مغولي او تيموري دوو مکتبونو په پړاو کي يې يوه بېله او بشپړه خراساني نقاشي رامنځته کړې ده"

ډاکټره کريستين ريسن -

ډاکټره کريستين ريسن د بهزاد د اسلوب ځانګړني داسي په ګوته کوي -

۱. د تصويرونو په کرښو کي سمون او بشپړه ځيرتيا

۲. د رنګونو د اخښلو په مټ د څېرو او قيافو د حالت حيرانوونکې ښکارونه

۳. د تصويرونو د اشارو معنادار خوځښت

۴. د ونو، ګلونو، ليرو ځايونو په انځورولو او هم د لمر وړانګو او اوريځو په ښکاره کولو کي ظرافت

۵. ډول-ډول رنګونه او يو له بله يې همږغول

د بهزاد په نقاشۍ کي له زرينو، نقريي او نورو بېلابېلو ترکيبونو سره يو ځای سرمه يي، تېز زرغون، فېروزيي، روښان زرغون او زيتوني ژړ قهويي رنګونو په شان ساړه رنګونه کارول سوي دي

ستر مورخ خواندمير :-

(د حبيب السير مولف (۱۴۷۵ - ۱۵۳۵م - ۹۸۸ يا ۹۳۳هـ) د نوموړي استاد په اړه ليکي-

"بهزاد د خپل هنر په زور زموږ مخي ته ډېري حيرانوونکي او نادري څېرې انځوروي. د ده طراحی او هنرمندی د دنيا د ټولو نقاشانو آثار د ژوندانه له پانې تورېلي او معجزه زېږوونکو ګوتو يې د دغو ټولو هستوونکو، نقاشانو او انسانانو څېرې او نقشونه پټ کړي دي. د ده قلم په خورا مهارت او استادی مړو شکلونو ته ژوند بخښي"

بلوچه :-

بلوچه په مسلم پتنګ کتاب کي د بهزاد او کاري اسلوب په اړه يې ليکي-

"د بهزاد د مکتب کارونه د سلطان حسين ميرزا پر مهال بېساري ځلا لري" او همدارنګه يې د سبك په اړه ليکي:-

"هراتي سبك جګړييزي صحنې په ځانګړې توګه د ښارونو د محاصرو پر مهال د سپرو دوه اړخيز بريدونه دومره اوچت او بېساري انځور کړي چې اعجاز ورته ويلای سو"

پرسيسايکس -

پرسيسايکس د اروپايي رنسانس او هرات ورته والي ته د نغوتي پر مهال ليکي-

"غوارم په هرات کي د هغه ځلاند رنسانس (تيموري پړاو) د پايلو او دې ته ورته هغې بيارغوني په اړه لنډ ورغېږم چې د اروپا تياره پړاوونه يې مات کړل. په يوه نظر دواړي نړۍ توپير سره لري، ځکه د هراتي رنسانس بنسټ اسلامي مذهب او د اروپايي هغه اساس د عيسوي مذهب پر مخالفت ولاړ دی."

## د بهزاد مهم آثار

(يا هغه څو نقاشۍ چې له بهزاد سره تړل کېږي)

ډاکټره ډيمانډ په خپل کتاب (د اسلامي صنايعو لارښود) کي داسي وايي:-

"خپله د بهزاد له خوا لاسليك سوي آثار ډېر لږ پاته دي، په دې معنا چې په ډېرو نقاشيو کي د بهزاد لاسليکونه سته، خو د ده خپل کارونه نه دي، بلکې هممهالو يې پر خپلو نقاشيو ورزيات کړي دي. هغه معتبري نقاشۍ چې د نوموړي څواکمن استاد کار بلل کېدای سي، هماغه په دوو معتبرو لاسي نسخو کي څو انځورونه دي چې يوه يې خمسهٔ نظامي(۹۴۶هـ - ۱۴۴۲م) نومېږي او د برتانيا په موزيم کي پرته ده. ويل کېږي چې په ۸۹۸ هـ - ۱۴۹۳م کي درې نوري ميناتورۍ رسم او پر زياتې سوي دي. د بهزاد بله نوموتې نقاشي د بوستان يوه نسخه ده چې په ۸۹۳ هـ - ۱۴۸۸م کال کښل سوې او اوس د مصر په قاهره کتابتون کي ساتل کېږي.

دغه ميناتورۍ ښيي چې هنرمند د طبيعت په کتنه (مشاهده) کي خورا ځير او ژور دی او په رنګونو کي يې ځانګړې پوهه لري. د بهزاد بل اثر د ظفرنامې يا تېمور تاريخ انځورونه دي چې د شرف الدين په قلم ليکل سوی او په ۱۴۵۳م کي پای ته رسېدلی دی.

ځيني مورخان په دې اند دي چې دغه کتاب هماغه اکبرنامه ده چې د مغولي بابرشاه د زوی همايون په شاهي کتابتون پوري اړه لري. سلطانعلي استنساخ او بهزاد نقاشي کړې دي.

ډيمانډ ليکي:-

"د ظفرنامې يا تېمور تاريخ شپږ دوه صفحې ميناتورۍ چې د بالتيمور په رابرټ ګارټ ټولنه کي خوندي دي، د امپراتور جهانګير له خوا د انځور پر څنډه د يادښت له امله له بهزاد سره تړل کېږي. دغه کتاب د مشهور خطاط سلطانعلي مشهدي له خوا په ۸۷۲هـ - ۱۴۶۷م کي د سلطان حسين ميرزا لپاره خطاطي سوی او ميناتورۍ وروسته ورسره يو ځای سوي دي.

که څه هم د ميناتوريو رنګ آميزي د بهزاد تر کارونو لږ روښانه ده، خو د نقاشۍ سبك يې د بهزاد ځانګړې هغه دی، ځکه بهزاد د اشخاصو د څېرو په انځورونه او رنګ آميزۍ کي د ځانګړي ستايل ښښتن دی."

(پوپ) هم د تېمور تاريخ د ظفرنامې په اړه داسي ليکي:-

"د ظفرنامې انځورونه او نقاشۍ په ۸۷۲ هـ کي د سلطان حسين ميرزا لپاره کښل سوي خو د ګارټ ټولي مذهب کارۍ يې لاسليکه دي. همدارنګه په (اسلامي انسايکلوپيډيا) کي هم دغه ظفرنامه ياده سوې چې ښايي بهزاد يې پر نقاشيو له خپلو شاګردانو سره ګډ کار کړی وي، يا بيا هم ويل کېدای سي چې ښايي يوازې يې پای ته رسولي وي.

د بهزاد يو بل اثر د جنت د باغ انځور دی چې ډېر ستايلو وړ دی، په تېره هغه درې حاشيوي ستنونه چې پر ګنبده چاپېر دي، په خورا ځيرتيا انځور سوي دي."

ډيمانډ يو بل ځای کاږي:

"څو کاله وړاندې د ترکيې د اوقافو وزارت يوه کارکوونکې د بهزاد د آثارو په نوم يوه کتابچه موندلې وه چې متن يې په فرانسوي ليکل سوی دی. په ياده سوې کتابچه کي د ضحاك يو انځور تر سترګو کېږي چې د بهزاد په شهکارونو کي راځي."

په دغه انځور کي ليدونکی د ضحاك ظلم او زورواکۍ ته پر ړېږد راځي. د برلين په ملي کتابتون کي هم د بهزاد ۳۳ ټوټې ميناتورۍ (د بهزاد نګارخانه) سته. دغه ميناتورۍ د امير خسرو د ديوان په يوه نسخه (۱۴۹۶م ليکل سوې) کي راغلي چې څو ټوټې يې د بهزاد کار بلل کېدای سي.

د بهزاد يو بل شهکار د سلطان حسين بايقرا انځور دی چې د مارتين د کلکسيون برخه ده. د بهزاد يو بل اثر د يوه شهزاده څېره ده. همدارنګه د بهزاد يو شمېر آثار په يوه ډېره ښکلې خطي نسخه کي راغلي چې په ۱۵۱۱م کال په هرات ښار کي د سلطان حسين بايقرا د کتابتون لپاره ليکل سوې او نن سبا د لندن د برټش موزيم ښايست دی.

د معلوماتو له مخې ياده سوې نسخه د محمد بن عطار(۱۴۸۵م) ده چې بهزاد چينايي څېرې پکښې انځور

کړي او باید وویل سي چې د ده یو شهکار بلل کېږي

د بهزاد له نورو خلق سوو آثارو څخه یو خوږ هرکلی دی چې په بشپړه توګه حیرانوونکي انځور سوی، په ځانګړې توګه یې لرګینې کړکۍ چې باریکیو ته یې پوره پام سوی او نقاشۍ یې لیدو وړ او سره بېلېدونکي دي.

همدارنګه د لیلا او مجنون د انځوریزې کیسې میناتوریو ته په کتو ویل کېدای سي چې هنرمند د مینې د جذباتو په څواک یو خارق العاده کار کړی دی

د استاد بهزاد له نورو ارزښتناکو آثارو څخه یو د یوه بڼ پر بام یوه مېلمستیا ده. بل د یوسف او زلیخا د زندان د مانۍ په تالار کي یو مجلس دی او بل هم د سمندر پر غاړه د غره په لمن کي د یوې بوډۍ او یوه ځوان انځور دی چې د بهزاد لاسلیک لري او د نیویارك په کورکیان ټولنه کي ساتل کېږي

په دغه دایروي انځور کي د بوډاتوب او ځوانۍ یوه ښه انځور سوې ده. د استاد یوه بله میناتوري چې بهرام ګور د ښکار پر مهال ښیي، ډېر تر فرده محدوده او ستاېلو وړ ده. دغه میناتوري د میټرو پولیټن موزیم د (هفت پیکر نظامی) په نوم یوه نسخه کي ساتلي او د یوه ډېر روښانه لاسلیك له مخي په بهزاد پوري تړل کېږي

یو بل اثر یې د شاه طهماسب د ځوانۍ یو کوچنی انځور دی چې پر یوه ونه ناست او د (پیر غلام بهزاد) لاسلیك لري. نوموړی تصویر اوس د فرانسې په لور موزیم کي دی. همدارنګه پر اس د ناست سلطان حسین میرزا یو بل انځور چې تر لاندې یې لیکل سوي دي

(تصویر سلطان حسین میرزا بهزاد) د نوموړي سپاره له توري سره یو سپر هم ځوړند دی. دغه انځور د (الفقیر بهزاد) ښکلی لاسلیك لري

د استاد بل اثر د محمد شیباني ازبك انځور دی چې د رنګونو همږغۍ یو ځانګړی څوند ورکړی دی او پر یوه ډېر برجسته ځای یې لیکل سوي (العبد بهزاد). دغه انځور ښایي د ۹۱۳هـ ـ ۱۵۰۷م کلونو په شاوخوا کي یعني هغه مهال رسم سوی وي چې محمد شیباني هرات نیولی و

د فریر ګالرۍ د ارټ په یوه پاڼه کي د یوه بوك لرونکي اوښ داسي انځور سته چې د بهزاد له کارونو سره بشپړ ورته والی لري. د (قصر ګلستان ایران) په کتابتون پوري تړلی د دوو اوښانو د جګړې میناتوري چې په شرح او لیکنه یې په باور سره، خامخا د بهزاد له لوري د ده د ژوند پر اویا کلنۍ تر سره سوی کار دی. د یوپ پر یادونه برسېره په اسلامي انسایکلوپیډیا کي د یوې بلې نیمي پاڼه میناتورۍ یادونه سوې چې اصلاً یې دوې بشپړې پاڼې نیولي او په یوه بڼ کي یوه مېلمستیا انځوروي او لاندې یې (عمل بهزاد) لیکلي دي

په ارټ ګالرۍ کي یوه تر ستړګو کېدونکې پاڼه د سمندر له لارې د شهزادګانو غلا ښیي او له بهزاد سره تړل کېږي. دغه میناتوري د بېړۍ په مرسته یوه معبد ته د سکندر رسېدل انځوروي. یوپ دوې نوري میناتورۍ چې یوه یې شېخ عراقي او بله یې د حضر محمد ص نقش له یارانو سره ښیي، یادوي او لیکي

د دغه وروستي یاد سوي انځور د حاشیو او جامو په جوړونه کي دومره دقت، نفاست او په زړه پوري رنګونه کارېدلي او څېرې داسي سره بېلې سوي چې په یقیني توګه یې باید د قاهرې د بوستان سعدي له یوې نسخې سره تړلي وبولو او هم په مرقع ګلشن کي په بهزاد او عبدالصمد پوري تړلې میناتوري چې د ایران په ګلستان مانۍ کي په سلطنتي کتابتون پوري اړه لري

همدارنګه د شعرونو په یوه بله وړه ټولګه کي چې د بهرنیو چارو د وزیر ملك احمد لپاره کتابت سوې، ۹۳۰هـ ـ ۱۵۲۴م نېټه پر وهل سوې او د واشنګټن په فریر ګالرۍ آرټ پوري اړه لري. د بهزاد یو بل کار د حافظ د دېوان سرلوحه (۱۴۶۰م) ده چې په بستون کي موجوده ده.

د استاد یو بل اثر د مجنون د پلار له لوري د مجنون د زېږېدو د لمانځنغونډې د باتدار میناتوري ده چې د لیلا او مجنون د کتاب په یوه نسخه پوري اړه لري. بل پر تورانیانو د ایرانیانو د سوبې میناتوري او هم د شاهنامې په لاسي نسخه کي د سکندر میناتوري

د مولانا جامي د (سلامان) کتاب نقاشۍ، میناتورۍ او زرکارۍ چې سلطانعلي خوش نویس خطاطي کړي و. نوموړې نسخه د افغانستان په موزیم کي ساتل کېده چې له بده مرغه د شلمي پېړۍ د پیل په اړودوړ کي له منځه تللې ده. بل د بهزاد مرقعات یا بهارستان دی چې د سلطان حسین میرزا مجلسونه یې په بېلابېلو ډولونو او ښکلو میناتوریو انځور کړي دي

باید وویل سي چې څلوېښت داسي ټوټې چې پر یوه څوا یې د بهزاد نفیسي نقاشۍ او پر بله یې د ده د مهال د نوموتو خطاطانو لیکنې سوې وې، له منځه تللې دي. دا

ول د بهزاد د ولوله بیزو آثارو په اړه د یو شمېر لیکوالو او څېړونکو نظرونه چې همدا اوس ـ اوس د نړۍ د سترو موزیمونو ښکلا ده او د بهزاد نامي نوم پکښې ځلېږي

**بهزاد او شاګردان یې**

ډیماند د اسلامي صنایعو په کتاب کې لیکي

د بهزاد تر ټولو نژدې شاګرد قاسم علي هروي دی چې د انساني څېرو په انځورونه کې مشهور دی. د نوموړي استاد کار د هغو لاسي نسخو له میناتوریو څخه پېژندل کېږي چې د ده لاسلیک لري. د نظامي په یوه نسخه (۸۹۹ هـ) کې چې د برتانیا په موزیم کې ساتل کېږي، اووه میناتورۍ د قاسم علي لاسلیک لري. یو شمېر نور هغه آثار چې له قاسم علي سره تړل کېږي په دې ډول دي:

د امیرعلي شېر نوایي د کارونو د دوو نسخو انځورونه چې په بودلیان کتابتون کې خوندي دي او نېټه یې ۸۹۰ هـ ـ ۱۴۸۵م ده او دوې میناتورۍ یې د نوموړي هنرمند لاسلیک لري چې یوازې د رنګ آمېزۍ له مخې د بهزاد کار دی نه د رنګ او نوښت له پلوه.

دوست محمد هم په خپله سریزه کې د هروي څېره کښونکي قاسم علي په اړه لیکي:

دی د استاد بهزاد نوموتی شاګرد دی، مجلسونه د استاد په تقلید داسې طرح کوي چې د استاد له آثارو سره یې توپیر ډېر ګران دی. ډېرو ختیځ پوهانو یې د آثارو په بېلتون کې تېروتنې کړې دي. آثار یې لږ ـ لږ موندل کېږي، لکه چې د لاسلیک عادت یې هم نه درلود، د مړینې نېټه یې نه ده څرګنده. همدارنګه د دوست محمد هروي په سریزه کې د بهزاد یو شو نور شاګردان هم یاد سوي چې ځیني یې ځنې معرفي کوو:

۱. خراساني شیخ زاده

۲. مولانا مظفرعلي مبرك الحسیني

دی د بهزاد نوموتی شاګرد دی چې ډېر شاګردان یې روزلي دي او په سریزه کې د استاد بهزاد خوریی بلل سوی دی.

۳. جلال الدین میرك الحسیني

دی آصفهاني او د بهزاد نوموتی شاګرد دی چې د نوموړي په پاملرنه د بزرګۍ مقام ته رسېدلی او د صفوي مهال دومره مشهور نقاش دی چې تر بهزاد وروسته یې نوم [illegible]

۴. استاد محمدي

د سلطان محمد هروي زوی او د استاد بهزاد نوموتی شاګرد دی چې د استاد چنداني پېښه یې نه ده کړې. په میناتوریو کې یې ځیني نوښتونه رامنځته کړي او د مجلسونو انځورونه یې خورا خواږه او زړه کښونکي کښلي دي. استاد محمدي د دې فن ډېر لوی استاد بلل کېږي.

د آثارو له کتو څخه یې ښکاري چې د یوه ځانته مکتب او ځانګړې لارې څښتن او د میناتورۍ په فن کې د اوښتون بنسټګر شمېرل کېږي، چې وروسته یې د رضا عباسي په نوم یوه شاګرد له لوري سبك او اسلوب د کمال تر پولې ورسېد. ډاکټره کرستین ریسن یې د سبك په اړه لیکي:

د شاه طهماسب د سلطنت په وروستیو کې د محمدي په نوم یو نقاش مشهور سو چې د سلطان محمد هروي شاګرد او زوی و. پر کښلو نقاشیو برسېره یې په رنګي نقاشیو کې یو نوی او ښکلی سبك رامنځته کړ او د انسان و حیوان په انځورونه کې هم د یوه ځانګړې ظرافت له امله مشهور دی.

مصري پوه ډاکټر ذکي حسین په دې اړه لیکي:

دغه مکتب چې د رضا عباسي په وخت کې خپل اوج ته ورسېد د انځورونو کیفیت دومره لوړ کړی چې لیدونکی یې په ستاینه اړوزي. له طبیعت سره بوختیا، سیوري، رڼاګانې، لیرې و نژدې پردازونه (پرسپیکټیو)، د رنګ نازکي، د تصویر د مجسمولو په موخه د رقیقو رنګونو کارونه او کاریکاتور د نوموړي استاد کاري ځانګړني او د دې لپاره بس دي چې مشران یې د یوه نوي مکتب او اسلوب په توګه معرفي کړي. دغه اسلوب د استاد محمدي هروي له خوا پیل د رضا عباسي په وسیله بشپړ سوی دی.

**په نورو ځایونو کې د بهزاد شهرت**

دلته ضروري ده چې په نورو هیوادونو کې د دې مکتب شهرت او اغېز وڅېړو او هوړې یې د رڼا څرک ولګوو.

د دوست محمد هروي په سریزه کې کښل سوي چې د بهزاد د میناتورۍ د مکتب ریښه او بنسټ شاه اسمعیل صفوي او عبیدالله ازبك له هراته وایسته او تر خپل منځ برابر وېش یې وکړ، نیم هنرمندان بخارا او نیم قزوین ته

ولېږدېدل، مګر بخارا تـه لېږدېدلو هنرمندانو د ناخوښـۍ له امله لږ وروسته د هندوستان لار ونیوله

## د صفوي پړاو نقاشي

چـې د هـرات د هنـري مکتـب ادامـه وه، ډیمانـد د اسلامي صنایعو پـه کتـاب کـې د صفوي پـړاو د بخارا او هند د مغولي نقاشۍ د مکتب یادونه کوي او لیکي

د ۱۶مې پېړۍ په پیـل کـې د خراسان د نقاشـۍ مرکز تبرېز تـه ولېږدېد، پـه داسـې حال کـې چې هرات د یو څه مهال لپاره د صنعتي او هنري مرکز پـه توګـه پاتـه سو. پـه غالـب ګومـان د اتلسمي پېړۍ پـه پیـل کـې پـه هرات او د خراسان په نورو ښارونو کې د پرې کښل سوي لاسي نسخې په تبرېز کې انځوریزي سوي دي. په هرات او تبرېز کې د بهزاد نفوذ پر ځای او شاګردان یې پر پله روان ول

پـر ۱۵۱۰م ـ ۹۱۶هـ کـال بهزاد پـه تبرېـز کـې و او د صفوي نقاشۍ د ښـوونځي بنسټګر بلل کېدای سي. څو موجودي میناتورۍ د بهزاد د تبرېز له پړاو سره تړل کېږي، خو یوه نمونه چې په رښتیاینه کې یې شك نه سي کېدای د دوو تنو هغه انځور دی چې پـه یـوه لاسي نسخه (۱۵۲۴م ـ ۹۳۱هـ) کې موجود دی او نوموړی کتاب د نیویارك پـه یـوه شخصي ټولنه کې ساتل کېږي

د صفوي پړاو پـه پیل کې د بهزاد د مکتب اسلوب پـه دوو میناتوریو او د ګوی وچوګان عرفي نسخې پـه لـومړۍ پاڼه کې چې د مشهور خطاط علي حسیني پـه وسیله پـه (۹۲۹هـ ـ ۱۵۲۲م) خطـاطي سـوی ښـکاره دي چـې اوس د پاریـس پـه لوی کارتیـه ټولنه کې ستـه. پـه دغـو میناتوریو کې اشخاص له لنګوټو او نوکي خولیو سره لیدل کېږي او د خولۍ دغه سبك په صفوي پړاو کې رامنځته سوی او د همدې دوران د نقاشـۍ لـه ځانګړو ځانګړنو څخه شمېرل کېږي

بلـه میناتوري چـې خسـرو او درباریـان یـې ښـیي، د صفوي پړاو د پیل یوه غوره نمونه ده، چې پـه هرات ښار کې رامنځته سوه. پـه دغو انځورونو کې د اشخاصو څېرې پـه (حافظ کارتیـه) نسخه کې د شیخ زاده لـه کار سره ډېر ورته والی لري او لکه څنګه چې په پای کې یې پوهاند کوهنل یادونه کړې دغه نقاشي د نوموړي استاد بللای سو، ځکه د همده د سبك د بشپړتیا کیسه کوي ودانـۍ او جامې خورا ښکلي انځور سوي او د رنګ آمیزۍ نوي ترکیبونه کارېدلي دي

## د بخارا مکتب

د صفوي پړاو د نقاشۍ له مکتب سره په یوه مهال پـه بخارا کې هم یـو مکتب ګامونـه اوچتـول. دغـه برخـه لـه ۱۵۰۰م څخه تر ۹۰۶هـ پورې د ازبکو شیباني پاچاهانو پـه ولکه کې وه

له ۱۵۳۵م څخه تر ۹۴۲هـ پـورې د هرات د مکتب یـو زیات شمېر نقاشان او خطاطان بخارا ته واستول یـا وشړل سول او هغوی هورې خپل کار پر تېموري سبك په ځانګړې توګه د بهزاد پر هغه روان کړ. بخارا ته تر یادې سوې نېټې پـه وړانـدې راغلـو هنرمندانو کـې یـو د میرعلـي شـاګرد مشـهور خطـاط محمـود مـذهب دی، ډېـر لاسـلیك سـوي کارونه یې موجود دي چې ځیني یې د ده د هرات لـه مهال سره تړل کېږي

(مینه ناکي منظري) د نوموړي د نقاشیو یو البوم دی چې د مشـهد پـه حضرت رضا زیـارت کـې سـاتل کېږي. پـه یـاد سوي البوم کې د نوموړي استاد د شاګرد عبدالله نقاشۍ هم لیدل کېږي چې په بشپړه توګه د بخارایي مکتب سبك دی

د محمود د بخارایي سبك نمونه د نظامي د مخزن الاسرار نسخې په دوه ورقیزه میناتوري (۹۵۳هـ ـ ۱۵۴۶م) کې چې د پاریس پـه ملي کتابتون کې پرتـه ده، تـر سترګو کېږي. نوموړی کتاب په ۹۴۴هـ ـ ۱۵۳۷م په بخارا کې امیر علي خطاطي کړی دی. د نیویارك په میټروپولیټن موزیم کې د بخارایي مکتب څو خطي نسخې او میناتورۍ ستـه. یـوه یـې د جامي د یوسف زلیخـا نسخـه ده چې پـه ۹۳۰هـ ـ ۱۵۳۳ـ ۴م کې د میرعلي الحسني له خوا لیکل سوې، خو میناتورۍ له ډېر وروستي مهال یعني له ۱۵۴۰م( ۹۴۷هـ سره تړلي دي. د بهزاد د مکتب نفوذ د منظرو او اشخاصو د څېرو پـه انځورونـه کې چې معمولاً بخارایي پګړۍ لـه ځانه سره لري، ښکاره دی

## د هند مغولي مکتب

د بابر پـه لاس د هند سوبې هندوستان تـه اسلام وبخښـي. که څه د مغولي سلطانانو په دربار کې د هرات او هند یو نوی اسلوب وزېږېد، مګر ملي او سیمه ییز سبك اوږد مهال وغځېد او پر مخ لاړ

**د بابر پړاو (۱۵۳۰_۱۵۲۶م)**

د همایون (۱۵۵۶_۱۵۳۰م) او اکبر (۱۶۰۵_۱۵۵۶م) په مهالونو کې د بابر د نقاشیو او آثارو په اړه معلومات په لاس کې نه سته. خو د تاریخي ادبي سرچینو څخه ښکاري چې نوموړی امپراتور نه یوازې د ښکلو صنایعو ساتونکی و، بلکې یو فیلسوف، پوه او د پنځ (طبیعت) مینه وال او ستر تړی گرځاند هم و

کوهنل لیکي

د ده د مهال له میناتوریو څخه یوازې په یو البوم کې د سمندري جگړې په یوه پرده کې چې یو مهال یې له امپراتور جهانگیر سره اړه لرله او اوس د برلین په دولتي لرغونتون کې ساتل کېږي. د هرات د مکتب اغېز خورا ښه لیدل کېدای سي تر بابر وروسته همایون پاچا سو چې په ۱۵۴۰م_۹۴۷هـ کې یې د نادرشاه د فشار له امله خپل هیواد پرېښود او تبعید سو

تر ۱۵۵۵م_۹۶۳هـ پوري په تبعید کې واوسېد نوموړي ډهلي ته له کابله د راتبدو پر مهال خواجه عبدالصمد او میرسید علي له ځان سره د امیرحمزه د کیسې د انځوریزولو لپاره بوتلل

له همدې امله دغه دوه تنه د مغولي نقاشی د مکتب موسسان بللای سو. د امیرحمزه د کتاب یو زر او څلور سوه نقاشی او انځورونه په بېلابېلو ټولنو، د نیویارک په میټروپولیټن موزیم، صنعتي موزیمونو او د لندن په ویکتوریا او البرټ موزیمونو کې خوندي دي، چې ډېرکی یې میرسید علي، عبدالصمد او هندیو نقاشانو کښلي دي اکبر هم د خپل پلار غوندي د نقاشی هنر یو جدي پالونکی و. نوموړي په ۱۵۶۶م_۹۷۷هـ کې د (فتح پور سکري) په نوم یو نوی ښار جوړ کړ چې ټولي ماڼی یې په نقاشیو ښکلي سوي وې، ده د هندی نقاشی د مکتب په جوړولو لاس پوري کړ چې څه باندي سلو هنرمندانو کار پکښي کاوه

په یاد سوي مکتب کې د بهزاد او میرک سلطان محمد غوندي سترو استادانو آثار د هندیو هنرمندانو د لارښوونې لپاره راټول سوي ول چې د کارونو نمونې یې نن هم د هند او نیویارک د میټروپولیټن په ټولو موزیمونو او کتابتونونو کې سته

د المسمی بهری په وروستیو کې د هند د لرغونو دودونو د نفوذ په پایله کې چې د کشمیر، گجرات او پنجاب هنرمندانو په خپلو نقاشیو کې وکارول، مغولي نقاشی ملي سبک خپل کړ. د درباري نقاشانو له خوا په انځوریزو سوو خطي نسخو کې د تیمور، بابر او اکبر د ژوند په اړه یو شمېر تاریخي کتابونه سته. د (اکبرنامه) کتاب یوه نیمگړې نسخه د لندن په (چستربیټي) ټولنه کې موجوده ده چې میناتوری یې د دهرم، سانولا، شینکر، لعل سورداس او گورادهان کارونه دي

یوه میناتوري پکښې د اکبر د پړاو د نقاشی نموده چې تیمور د دوو لوړ پوړو اسیرانو د منلو په حال کې ښیي. دغه نقاشي چې په دهرم داس پوري تړل کېږي د نوي مغولي سبک د ټولو ځانگړنو ښتنه ده چې د هراتی، هندي او اروپایي نقاشی له ترکیب، عناصرو د مجموعې او ځانگړنو څخه عبارت دي. په میټرو پولیټن موزیم کې د (بساوان) یوه ښکلې میناتوري سته چې په پاستیل رنگونو او ضعیفو کرښو کښل سوې ده. د ۱۴۰ انځورونو لرونکې یوه بله معتبره نسخه د بابرنامه په نوم د هند په برتش موزیم کې سته چې د اکبر دربار د یوه مشهور نقاش سورداس په قلم کښلي یو انځور پکښي دی

په یاد سوي انځور کې د اشخاصو حرکات ډېر موزون او خوندور رسم سوي او یاسمني رنگونه پکښي کارول سوي دي. همدارنگه د همدې تصویر پر شا د همدغه نقاش یو بل انځور سته چې یو کاروان پکښي رسم سوی دی. په دې انځور کې نقاش له بېلابېلو کچو ژورتیا څخه کار اخیستی، پر څېرو او جامو یې ډېر پوخ او استادانه کار کړی او زرغونه رنگونه یې چې د هراتي مکتب خاصه ده، په استادانه توگه کارولي دي

همدارنگه یو بل د (فرخ چهل) په قلم کښل سوی تصویر دی چې د کلا دباندي او دننه جگړییزي منظري یې خورا استادانه انځور کړي. د نوموړي تصویر په متن کې د هراتي مکتب رنگونه خو حاشیو کې مغولي هغه کاربدلي دي

یو بل انځور د پندت نقاش دی چې د بهزاد د مکتب ځانگړتې لري. په دغه انځوریزه نسخه کې د بابر د دربار یو انځور رسم سوی چې د اشخاصو حرکات یې ډېر پاخه انځور سوي، خو د څېرو رنگونه ډېرنه دي کار سوي. د سورداس یو بل تصویر هم سته چې د جگړې د ډگر ننداره یې خورا پخه انځور کړې او د خپلو نورو تصویرونو په شان یې له یاسمني رنگ څخه پکښي کار اخیستی دی

په دغه نسخه کي د «ترسنګ» په قلم کښل سوی یو بل انځور تر سترګو کېږي دغه نقاش هم له یاسمني رنګه کار اخیستی، خو پر کلا، ونو او ځېرو یې ډېر خېر کار کړی دی په یوه بل انځور کي بابر پر اس سپور او له خپل رعیت څخه د ډالیو د منلو پر مهال رسم سوی او تر سوبي وروسته یو حالت ښکاري پر یاده سوې منظره ډېر دقیق او استادانه کار سوی، مګر له بده مرغه د نقاش نوم یې له منځه تللی دی

یو بل انځور د «درمدراس» لیدل کېږي چي په طبیعي رنګونو سره د دښت او بېدیا یوه کښل سوې منظره ده نوموړی د ځېرې او رېږې په رنګ، د هوسۍ، شرمښ او ګیدړي غوندي ژوو او د لیري و نژدې ونو په انځورونه کي خورا دقیق سوی دی د «جمال» په نوم د یوه بل نقاش انځور هم تر سترګو کېږي

همدارنګه جګنات، مادهو، کهمکران، بهګوان، محمد کشمیري، بهواني، کلرا او نقاشان سته چي د ټولو نومونه راوړل خبره ډېره اوږدوي یوازي دومره ویلای سو چي مغولي نقاشانو د هراتي سبک او بهزاد د مکتب په پیروی معتبري نقاشي پر ځای پرې ایښې دي او د هند د کتابتونو موزیم د دغو انځورونو د لړلو له امله غني بللای سو

### د جهانګیر پړاو

جهانګیر هم د هنر له مینه والو څخه و، چي د پړاو میناتوریو یې په ټولیزه توګه د مغولي سبک رنګ درلود نوموړي تر میناتورۍ جوړوني او خطي کتابونو زیاته مینه د خپلو ژوندنیو پېښو، نباتاتو او ژوو له انځورونو سره لرله، د دې پړاو مشهور نقاشان منصور مراد او منوهر دي

### د شاه جهان پړاو

په دغه پړاو کي د ډاکټري ډیمانډ په وینا د انځورګرۍ فن ډېر پرمختګ وکړ او په میټرو پولیټن موزیم کي د شاه جهان یو مشهور انځور پروت دی چي نوموړی په خپل سلطنتي برم او جلال کي پر تخت ناست ښیي. د دغه پړاو وتلي هنرمندان محمد فاخرالله، هاشم هودهاد او انوپ چهاتر دي، چي په میټروپولیټن موزیم کي د سید امیر خان انځور د انوت چهاتر هستونه ده. د شاه جهان زوی داراشکوه هم د خپل پلار په شان د نقاشیو په ټولونه کي نوموتی و، خو پاچاهۍ ته ونه رسید

د اورنګزېب په پړاو کي د درباري نقاشانو شمېر ډېر لږ سو چي همدا کړنه د اتلسمې او نولسمې پېړۍ په مغولي نقاشۍ کي د ځوړتیا د راښکاره کېدو لامل سوه

د دې لیکنې په پای کي باید پر دې یو څه رڼا ولوېږي چي بهزاد په څنګه حالاتو کي کار پیل کړ، ماشومتوب یې څنګه و او په دغه نړیوال هنر کي یې لومړنی هڅوونکی څوک و؟

د دوست محمد هروي په سریزه کي استاد کمال الدین بهزاد داسې راپېژندل سوی

هغه (بهزاد) له پلاره یتیم پاته سو، سید روح الله میرك د اولاد په توګه ومانه او ویې روزی، تر دې چي د هنر آوازې یې د ژوندانه غوږونه وتخنول نوموړی د سلطان حسین بایقرا او امیر علي شېر نوایي د پړاو هغه تر ټولو ستر نقاش دی چي ځلاند لمر غوندي یې له هراتي افقه سر وواهه او نړۍ یې روښانه کړه

دغه هنرمند د امیر علي شېر په روزنه او ناز د بشپړتیا تر کچي ورسېد او یو عالمانه او ښکلی سبک یې وزېږاوه چي د هرات یا بهزاد مکتب یې بولي

پوه ډاکټر ذکي وایي:

نور بهزاد د پیر سید احمد تبریزي شاګرد ګڼي چي په ښکاره لیري خبره ده، ځکه دا څنګه کېدای سي چي بهزاد دي د خواجه میرك په شان یوه برلاسي نقاش په کور کي لوی سوی وي او انځورګري دي یې له بله زده کړې وي!

په معلومه توګه بهزاد یعني د ختیځ دغه نابغه په هرات کي مړ سوی او د هرات د متخار غره اړخ ته په یوه له نقش او نګاره ډکه ځلور دېوالي کي د خپل خوريي رستم علي د قبر تر څنګ ښخ دی.

پای



❁ لیکنه: استاذ صباح :-
❁ ژباړه: همیم جلالزی، غزني :-

# د فلسفې او ژوند نړۍ

## موږ څه شي ته ښکلې وایو او یوه شي ته له ښکلې ویلو څخه زموږ ګټه څه ده؟

## لومړۍ برخه

**فلسفه څه شي ده؟**
په حقیقت کې هیڅکله هم نه سو ویلای چې فلسفه څه شي ده؟ یانې هیڅ وخت نه سو ویلای چې فلسفه دغه شی ده او له دې څخه پرته بل شی فلسفه نه سي کېدای. ځکه فلسفه د انسان د کاري برخې تر ټولو پراخه ساحه ده. او موږ هغې ته د یوه ځانګړي شي په مټ هیڅکله هم برید نه سو ټاکلی د فلسفې عمر ته که راسو نو د مخکې پر مخ د انسان له عمره سره پرتله کېدای سي فلسفې د تاریخ په اوږدو کې یې زیات بدلونونه لیدلي دي او په هره دوره کې یې له تېر مهال سره جوت توپیرونه پیداکړي دي
د دغې موخې لپاره دا خبره بسنه کوي چې د هغې بېلا بېلو تعریفونو ته وکتل سي
په دې اړه پام وکړئ: د فلسفې بېلا بېلو تعریفونو ته او له دې سره به موږ هڅه وکړو چې فلسفه تاسو ته سمه دروپېژنو

**د فلسفې ویی :-**
د فلسفې ویی (philosophy) یا فیلوسوفیا چې یو یوناني ویی دی له دوو برخو څخه اوډل سوی دی چې فیلو د مینې او سوفیا د پوهې په مانا ده هغه څوک چې د لومړي ځل لپاره یې دغه ویی وکاراوه، فیثاغورس نومیده
کله چې له هغه څخه وپوښتل سول چې ایا ته یو هوښیار او پوه سړی یې؟ نو ده ځواب ورکړ. نه، مګر د پوهې مینه وال او خوښونکی (فیلوسوفر) یم
نو پر دې بنسټ ویلای سو چې فلسفه د خپل پیدا ایښت له لومړۍ ورځې څخه له پوهې، تفکر او هوښیارۍ سره د مینې، محبت او دوستۍ په مانا ده

**د فلسفې پېژند :-**
فلسفه تفکر ته ویل کېږي. د نړۍ د بنسټیزو او ټولیزو سکالو ګانو په اړه چې موږ په خپل ژوند کې ورسره لاس او ګرېوان یو سوچ ته ویل کېږي
فلسفه هغه مهال رابرسېره کېږي چې کله موږ د خپل ځان او نړۍ په اړه ځیني بنسټیزي پوښتني رامنځته کوو. داسي پوښتني لکه ښکلا څه شی ده؟
له زوکړي وراندي به موږ چیرته وو؟ د وخت حقیقت څه ده؟ ایا پیښې کومه موخه لري؟ ایا ژوند کومه مانا لري او که یې لري نو څنګه به په هغې باندي پوهېږو؟
ایا داسې کېدای سي چې یو شی دي شتون ولري او د هغه لامل دي نه وي؟
موږ نړۍ د یو واقعیت په توګه پېژنو مګر واقعیت په څه مانا؟ د انسان برخلیک د ده په خپل لاس کې دی او که له بهر څخه ورته ټاکل کېږي؟
لکه څرنګه چې په دغو پوښتنو کې وینو فلسفي مسایل او پوښتني له آره څخه یو ډول ځانګړي چاري دي او په بله هیڅ ډول پوهه کې دا ډول سکالوګانو ته پاملرنه نه کېږي
د بېلګې په ډول هیڅ ډول پوهه دغو پوښتنو ته چې واقعیت څه شی دی؟ او یا نیاو (عدالت) څه شي ته ویل کېږي؟ ځواب نه وایي او له دې څخه ښکاري چې دغه کار د دغو مسایلو د یو ډول ځانګړتیا نښنه ده.
د فلسفي سکالو ګانو یوه ستر ځانګړتیا دا ده چې له ځانه

څخه د تل تر تله او همېشه والي ننبې ځرګندوي تل یې شتون لرلی او تل به شتون ولري او په هر مهال کې به د هغه وخت له اړونو. او د بېلا بېلو پوهنو له پرمختګ سره سم دغو مسایلو ته نوي ځوابونه ورکول کېږي

د بېلګې په توګه ویلای سو چې فزیک له مادي اجسامو څخه د هغوی د حرکت او سکون له مخې بحث کوي او بیولوژي بیا موجودات د هغوی د ژوند له اړخه تر څېړنې لاندې نیسي

مګر په فلسفه کې تر ټول بنستیز کار چې موږ ورسره سر و کار لرو هغه د تفکر د شتون خبره ده، که په بل ډول وواېو نو په فلسفه کې د وجود یا شتون آر په مطلق ډول. یاني بې له هر ډول قید وشرط څخه مطرح کېږي

له همدې امله ارسطو د فلسفې په تعریف کې وايي فلسفه هغه پوهه ده چې د موجوداتو په حال باندي سړی خبروي او دا اړخ یې څېړي چې شیان رښتیا هم وجود لري او که څنګه؟ د فلسفې یوه مانا په فکري او سولي استعدادنو باندي د هغې اطلاق بلل کېږي. څو انسان ته دا وس ورکړي چې شیان پېښني او ډول ډول چاري له ډېر لوړ او پراخ لید څخه وخیري او په دې توګه سره د وخت پېښني په پوره ډاډ. باور او ارامتیا سره وزغمي او فلسفه په دې مانا سره د حکمت انډول یا مترادفه ده

فلسفه داسې یوه پوهه ده چې غواړي تر ټولو بنستیزو حقیقتونو ته لاره اواره کړي

لکه څرنګه چې یې ابن سېنا داسې تعریفوي فلسفه د ټولو شیانو په حقیقتونو باندي پوهاوي ته ویل کېږي، په دومره اندازه چې د انسان په وس پوره وي فلسفه د خپل ژوند له لومړیو ورځو څخه یوه سپېڅلې او پراخه بشري پوهه بلل کېږي دغه راز فلسفې ته الهي پوهه هم ویل کېږي

د فلسفې په اړه داسې یو ګډ، اند د مسیحي او اسلامي ټولو پوهانو تر منځ هم شتون درلود لکه څنګه چې جرجاني وايي فلسفه له خدایه سره ځان دومره ورته کول دي څومره چې د انسان په وس کې وي او دا د ابدي ښېګڼو د ګټلو ښه لاره ده.

څنګه چې وړاندې وویل سول په بنستیزه توګه فلسفه د خپل پیدا ایښت له لومړیو ورځو څخه له پوهې، هوښیارۍ او سولي سره د دوستۍ او مینې په مانا وه او پر هغه پوهه یې اطلاق کېده چې دنړۍ په حقیقتونو باندي د برلاسیتوب په لټه کې وي. دغه راز په ښه شي باندي عمل کول (ښه ژوند) ته هم فلسفه ویل کېدای سي فلسفه د خپل ژوند د پیل په مهال په ټولو پوهو کې ګډه وه او دا ځانګړتیا یې تر پېړیو پېړیو پوري وساتله. لکه څنګه چې به یوه فیلسوف ته د ټولو پوهنو جامع ویل کېده. مګر سوکه سوکه نوري پوهې له هغې څخه بېلې سوې

پخوا هغه فلسفه چې ټولي پوهي پکښې راغونډې وې په دوه ډوله وه چې یوه یې اندي یاني نظري او بله یې عملي فلسفه بلل کېده په نظري فلسفه کې الهیات یا ګروهپوهنه. ریاضیات او طبیعي پوهني شاملې وې چې په تر تیب سره لوړه، منځنۍ او ټیټه پوهه ورته ویل کېده دا رنګه عملي فلسفه هم له دریو برخو څخه اوډل سوې وه چې اخلاق. کور سمبالونه او سیاست یې برخې وې. چې لومړۍ دا یې د انسان د ژوند د شخصي چارو په سمبالښت پسې اړه لرله، دوهم یې د کورنیو چارو په سمبالولو او دریېمه یې د هیواد د چارو په سمون او سمبالښت پسې تړلې وه

**د فلسفې مسایل :-**

د فلسفې مسایل تر ټولو بنستېز مسایل دي چې بشر کولای سي د هغه په اړه پوښتني وکړي د دغو پوښتنو ځانګړتیا دا ده چې تل یې شتون درلود. او تر دې وروسته به هم د تل لپاره پاته وي. او هیڅ دا ډول پوهه به پیدا نه سي چې د هغو لپاره به ځواب ولري او یا وواېي

هر څوک له دغو پوښتنو سره چې ژوند ته مانا ورکوي مخامخ دي داسې پوښتني لکه ښکلا څه شی ده؟

زما پوهه واقعیت لري او که یواځې ټول شیان د ننداري غونډي دي؟

ایا نړۍ کومه موخه لري او که هسې یوه بې مفهومه شی ده؟

او داسې نوري پوښتني هم سته چې په دغه برخه کې یې سړی مطرح کولای سي

هره پوهه که موږ په نړۍ کې ګورو نو موجودات له یوه ځانګړي اړخه او زاویې څخه تر کتني لاندې نیسي د بېلګې په ډول هندسه هر شي ته د اندازې، اړخونو او کچلو، له لوري ګوري کیمیا بیا هر شی د کیمیاوي خواصو او ځانګړونو له مخې مطالعه کوي مګر فلسفه بیا د موجوداتو د وجود یا شتون، د هغوی تر منځ د پېژندني او د هغوی د څه شي والي په اړه پوښتني کوي

په ټولیزه توګه که یوې پوښتني ته د تجربې، حواسو یا ازمویني په مټ ځواب ونه مومو نو وایو چې دا یوه فلسفي پوښتنه ده په دې ډول سره موږ کولای سو چې فلسفي

مسایل په پنځو آرو برخو باندي وویشو او دا پنځه برخي د فلسفې آري برخي شمېرل کېږي.

موږ د بېلګې په ډول له هغو مسایلو څخه چي په دغو برخو کي مطرح کېږي بیا هم څو پوښتني مطرح کوو.

**۱- د منطق فلسفه**:- له یو لړ سریزو څخه د استدلال د پایلي مانا څه ده؟ د باوري او بې باوره استدلال تر منځ توپیر څه شی دی؟ موږ له آره څخه ولي استدلال ته اړتیا لرو؟ د قیاسي او استقرایي استدلالونو تر منځ توپیر څه دی؟

**۲- پېژندلپوهنه**:- ایا په بنسټیزه توګه د یو شي پېژندل شونیتا لري؟ که چیري موږ یو شی پېژنو، نو له کومه ځایه موږ پوهېږو چي دا شی موږ پېژنو او له کومه ځایه پوهېږو چي دا شی موږ داسي پېژنو لکه څنګه چي دی؟

ایا په یو شي باندي باور کول شوني دي، او یا دا چي زموږ ټولي پېژندني یواځي ګمان دی نور څه نه دي؟ څرنګه کولای سو چي سمي پېژندني ته ځان ورسوو؟ ایا سول کولای سي چي ټول شیان درک کړي او یا دا چي ځیني شیان داسي هم سته چي د سول له کچي څخه لوړ وي او د هغو پېژندلو ته لاسرسی نلري؟

**۳- مابعدالطبیعـــه**:- (بـــودن) شتون څه مانا لري؟ ایا نېستي شتون لري؟ ایا هستي یواځي تر مـــادي موجوداتـــو پـــوري رامنحصره ده؟ ایا نړۍ پای ته نارسېدونکې ده؟ جسم یا ذهن، او یا بدن او اروا، یو له بله سره څه اړیکي لري؟

وحدت اوکثرت یاني څه او په نړۍ کي دغه دواړه یو بله سره څه تړاو لري؟ (نړۍ تر کومه ځایه پوري وحدت او یووالی لري او تر کومـــه ځایـــه پـــوري کثـــرت او اختلاف لري)

**۴- اخلاقي فلسفه**:- اخلاق څه شی دي؟ ارزښت څه مانا لري؟ نېک کړه وړه څه ګټه لري؟ ایا اخلاقي ارزښتونه همېشني دي او که پړتلیز؟ ایا په انسان کي د اخلاقي وجدان په نوم یو شی شتون لري؟ ایا ناوړه عمل یا کړه وړه په هر ډول وضعه او آرونو کي ناوړه دي؟

**۵- ښکلاپوهنه**:- موږ څه شي ته ښکلی وایو او یوه شي ته له ښکلي ویلو څخه زموږ ګټه څه ده؟ ایا ښکلا یو واقعیت دی او رښتیا هم یو داسي شی دی چي په سترګو لیدل کېږي، یاني په رښتیا هم په شیانو او موجوداتو کي د ښکلا په نوم یو شی شتون لري؟ او یا دا یو ذهني خبره ده او په هرچاپسي اړه لري، او داسي شوني چي یو چا ته دي یو شی ښکلی ښکاري او بل ته دي بیا ښکلی نه ښکاري؟ د هنر لاسته راوړنه څه مانا لري؟ دغه پوښتني یواځي یو څو بېلګې دي چي د فلسفې په ټولیزو مسایلو او د پام وړ برخو کي مطرح کېږي.

د فلسفې په هره برخه او ښاخ کي زیاتې فلسفي پوښتني شتون لري او هر یوه فیلسوف همدغو پوښتنو ته له نورو څخه بېل ځوابونه ویلي دي.

پاته لري ...



# هنر او ادب




عبدالمجید بابی

## د سلام غبرگون

سترگو کي مي ستا ښکلې څېره ښکاري
خدايږو هر ګړی هره شېبه ښکاري

زه مي دغه شغل مقدس ګڼم
ما ته چي دي ټول وجود کعبه ښکاري

هغه ابدي سپينو کاليو کي
تن دي راته سپينه فرشته ښکاري
ستا داسي ښکلا جانانه وګرځم
منځ کي چي د ښکلو سرغنه ښکاري

ګڼبت که مو د بلي نړۍ برخه سو
دلته دي د پښو خاوري رانجه ښکاري

ما ته دي زما د هر سلام غبرګون
هر ګړی د ميني ترانه ښکاري
لا مي زړه کي ستا د پېرزو زړغ زانګي
ستا د بېلتون لار راته کيسه ښکاري

ما چي ستا خاموش درشل کي چيغي کړي
ژوند راته په ژوند کي نذرانه ښکاري

بيا مي "**بابی**" خيال راته شکمن سو څه
نورو ويل ولاړ، ما ته بيده ښکاري

سعید لودین/کاناډا

## غزل

چي ورته څو ځله مي خولې څخه ښرا ووته
خدای سته هغو ته مي له زړه څخه دعا ووته
د څو تاريکو واعظانو د ګفتار اثر و
چي مو له ذهن او له زړه څخه رڼا ووته
دې ډېرين ښار کي وګړي مينه نه پېژني
ځکه له سترګو مي پسته اوښکه په غلا ووته
چي ته دلې وې زمونږ کلا به هم روښانه وه تل
چي ته رهي سوې زمونږ له کوره هم رڼا ووته
دې رباطونو کي "سعيده" آدم خور اوسېږي
دغه مظلومه کافله ولي تنها ووته؟

محمد نعیم آزاد

## غزل

يقين د ژوندانه لري ګمان د ژوندانه
اميد د ژوندانه لري امکان د ژوندانه
منم د اوښکو څاڅکي په سترګو کي واکمن وي
خو نه لري د ګل په غېږ کي توان د ژوندانه
د ژوند په ميکده کي د مرګ په خوب ويده و
د ميني په کعبه کي سو آذان د ژوندانه
تنې د تفکر مي وحشي جبر شلولي
په ستن د هيلو وګنډو ګرېوان د ژوندانه
ښکلا خو يوه برخه ده آزاده د ژوندون
بايد شاعري ولري عنوان د ژوندانه

ویلیم شکسپیر

د عبدالباري جهاني ترجمه

## راځه مرګیه

راځه مرګیه انتظار دي یمه
راوړه تابوت سترګي پر لار دي یمه

وروستی نفسه ژر مي پرېږده بدن !
ما ته نصیب دی راګنډلی کفن

زه یم وژلی یوې ښکلي نجلۍ
یوې ظالمي نازولي نجلۍ

په سپین کفن مي کئ دوستانو راځئ
وروستي دیدن ته مي یارانو راځئ

هیڅوک به زما په شاني نه وي تیار
داسي به نه وي د مرګي انتظار
چي تور تابوت ته مي درېږي یاران
هلته جوړ نه کي د ګلونو باران
نه دي سلام وایي څوک زما پر مړي
نه هدیرې ته دي را درومي دوستان
پرېږدئ زرګوني اوښکي وسپمېږي
ښه دی چي زما پر قبر نه تویېږي

ما یوه لیري هدیره کي ښخ کئ
پټ مي یو کونج کي په تیاره کي ښخ کئ

چي د هستي مي ریښتني مینه وه
چي مي سینه کي اورني مینه وه

چي زما په قبر یې خبره نه کئ
چي ورسره مي پخوانۍ مینه وه

چي مي پر قبر اوښکي نه تویوي
چي نوم د میني مي بیا نه یادوي

احمد صمیم

## شاعر او پسرلی

شګوفه چي به ورو ورو غوړېده
د شاعر د شعر غوټۍ هم سپړېده
چي پر ښاخ باندي به پاني نښېده
د شاعر د خیال زانګو هم زنګېده
چي پر څانګو به مرغان وټالېده
د شاعر د زړه تارونه لړزېده
چي فریاد به د بلبل راستنېده
د شاعر ستوني به هم ورېږدېده
چي غوټۍ به په نسیم راپاڅېده
د شاعر نوي فکرونه زېږېده
چي بورا به پر غوټیو کړېده
د شاعر خپل وړکتوب ور یادېده
چي شبنم به پر ګلابو څڅېده
د "صمیم" تر قلم اوښکي بهېده

عبدالقدیم پتیال

## غزل

له ساحله نا اشنا یم پر توپان باندي راګرځم
د خپل سر په نذرانه کي پر جانان باندي راګرځم
له هر ګام سره نشه ده له انګاره مستي اخلم
ژوند مي خُم دی د شرابو، پر مغان باندي راګرځم
بې شرابو کله شور سته، شور چي نه وي کله ژوند دی
د خپل ژوند په دې ګرداب کي، ساقي جان باندي راګرځم
ته دُرې مه راوړه دلته، ما د جام نور کي لیدلي
چي کعبه وي، چي طواف وي، پر ایمان باندي راګرځم
زه د خیال په آیینه کي ستا په وړاندي ډېر کوچنی یم
ګراني ستا د کږو ورځو پر کمان باندي راګرځم
له هر یاد سره دي مرمه ستا وجود به ټوله هېر کړم
بس یوازي ستا پر ټیک او پر پېزوان باندي راګرځم
له سرمستي میکدې مي دغه سود کړله زاهده !
چي سبحان باندي راګرځم پر یزدان باندي راګرځم
ما ته مه وایه چي مه ځه پتیال خپله دی بند سوی
ستا د زلفو په حلقو کي پر زندان باندي راګرځم

غفور لېوال/کابل

## غزل

شب پرست یم خپل یزدان سره مي شپه ده
ستا د زلفو لـه باران سره مـي شپه ده
مجلسي یاران مي ستوري او سپوږمۍ دي
مساپر یـم شنه اسمان سره مـي شپه ده
ستا د سترگو څـه نېکمرغـه اسارت دی
چي لـه تیر او لـه کمان سره مـي شپه ده
لـه گونگرو یـې د لنډیو شـرنگا اورم
ستا له ټیک او لـه پېزوان سره مي شپه ده
چي ویده سمه بس جنگ پـه خوب کي وینم
ستا د حسن لـه افغان سره مـي شپه ده

اروابناده کریمه فیض زاده رسولي

## زما د هیلو ناوې

زما دهیلو ناوې !
د نور آیینې ته ناسته
او د سبا (!) د پسرلي په خاطر ځان جوړوي
د تورو زلفو تر لاېو یې
د سپین مخ رڼا راځي
د ښکلا غلاوې کوي
اخلي سرخي د گلاب !
د خپلو شونډو، اننگو لپاره
کاسه کاسه نرگس راوړي
پټ د لېمو لپاره
هلال یې کنېبنبود د ښو په څوکو
محراب یې جوړ له وروځو
څوک به ورغواړي؟
د طواب له پاره !
او د سپین مخ په تجلا به
څوک راوپرځوي؟
او څوک به وسوځوي؟
زما د هیلو ناوې
د نور آیینې ته ناسته
او د سبا د پسرلي په خاطر
ځان جوړوي !!!

ثنا

## گوندي ویې منې گلي !

تـوکي نـه دي ماشـومانو لېـونی د دې کـوڅې سـوم
اوس مي کاڼو تـه سر جوړ دی، اوس لایق د تماشې سوم
اوس لـه پلاره مـه ډارېږئ ځئ بې جنگـه بې گیلې سوم
د تروږمـۍ لښکـرو راوړم بنـدېوان د تـوري شپې سـوم

د کسـوف غمـاز لـه لاسـه تـر سپوږمیه بې وعـدې سوم

مـا وې کـوزه بـه سپوږمۍ وي د چینې رڼـو اوبـو کـي
مـا وې پنډ بـه راتـه وري وي د رېـدیو پـه ډاگـو کـي
مـا وې هـر ژوی بـه خانـدي پـه خاموشـو ننـدارو کـي
مـا وې دښت بـه رنگـین زانگـي د غـاټولو پـه ټـالو کـي

د خیـالو پـر ربـاطونو را جـلا لـه قـافلې سـوم

مـا وې هسـي بـه لوبېـږو تـر هـا لـویي ونـي لانـدي
مـا وې هسـي بـه خنـدېږو نـوم بـه نـه اخلـو د سـاندي
ما وې لاس به مي وي لاندي، ما وې سر به دي وي باندي
خبـر څـه وم لـه زمانـه چـي څـه شـومي کـانې کانـدي

لـه خمـاره یـې انگېـرم لـه سـاقي بـې پیمـانې سـوم

سـتا چـي کـور پکښـي ودان و هغـه زړه اوس نړېـدلی
هلتـه بلـه بـلا گرځـي سـتا لـه یـاد څخـه وتلـی
د رنگینـو خیـالو حسـن اوس لـه هغـه ځایـه تللـی
هلتـه زړه د مـین نسـته محتسـب یـې ځـای نیـولی

هسـي ولاړم نیمـه خـوا سـومه بـې دره بـې تـوښې سـوم

گلـي خـدای لپـاره واوره څـو سـپېځلي فریادونـه
بیـا د شـونډو پـه سـره گـل کـي د خنـدا راوړه چلونـه
بیـا د سـترگو پـه ارغنـد کـي د مسـتۍ راوړه موجونـه
د ښـو پـه شـالمار کـي راتـه مسـت کـه اتڼونـه

گوندي ویې منې گلي "ثنا" سوال د سپېرې خولې سوم

خان محمد تمیل

## غزل

ستا عشق نه دی ښامار دی زما پر زړه چاپېره ګرځي
اورونه دي انګار دی، زما پر زړه چاپېره ګرځي
طبیبه درمل یوسه ستا درمل دلته کار نه کړي
د رنځ طبیب مي یار دی زما پر زړه چاپېره ګرځي
ژوندو کي به حساب سم که جانان مي راله راسي
که نه وي مرګ تیار دی زما پر زړه چاپېره ګرځي
څوک تږي وي د میو، خو زه تږی د دیدن یم
پر زړه مي پروت خمار دی، زما پر زړه چاپېره ګرځي
په حال که مي خبر سي، خامخا به راله راسي
ژوندون راباندي بار دی، زما پر زړه چاپېره ګرځي
د یار غمو کي ګیر یم، خوشحالي ته وزګار نه یم
د هجر لوی ناتار دی، زما پر زړه چاپېره ګرځي
د وصل کیسې مه کړه، زما نصیب کي وصل نسته
عجب مي نصیب خوار دی، زما پر زړه چاپېره ګرځي
رېغ مه کړه که مین یې، مینتوب دلته ګناه ده
عاشق وینم سنګسار دی، زما پر زړه چاپېره ګرځي
که عشق دلته ګناه ده، د "تمیل" سره به څه وي
څه مل خو یې بادار دی، زما پر زړه چاپېره ګرځي

سید عبیدالله نادر/کابل

## عالمي احساس

چي روښانه له کیني سي تیاره زړونه
د عالم له پاره پاک سي زموږ نیتونه

چي د نفس د غلامۍ څخه آزاد سو
په همت باندي مهار کړو خپل نفسونه

تر څو راسو په قطار کي د دردمنو
بیا احساس کړو، د تمام عالم دردونه

لومړی شرط د دې مقصد له پاره دا دی
چي سمبال په معرفت کړو، خپل ځانونه

سارا بیاباني /مالمو ـ سویډن

## علامه رشاد بابا

په تیتېدو را نه روان وې چي ما تا ته کتل
کر دي د ګلو و پرې ایښی، هیلو شا ته کتل

په توره شپه کي دي ګلونه د رڼا وروزل
څکه په تا کي حقیقي انسان ځلا ته کتل
په لوړو ځوړو کي دي لاره موږ ته سیخه کړله
تا په فاني دنیا کي هم زموږ بقا ته کتل
تورو لوخړو کي یوازې د قلم ملګریه !
د جنګ توپان کي دي د نسل تمنا ته کتل
تا د قلم ژبه ساتلې وه د زړه په وینو
د وطن عشق له حده تېر تا انتها ته کتل
اې پر وطن، دین او ناموس مین رشاد بابا
تا په هر ګام د خپل ولس د زړه مدعا ته کتل

تا د ادب له سمندر نه ملغلري ایستې
سارا ورځپانو مجلو کي ستا وینا ته کتل

حبیب الله قلم مل

## غزل

په تخیل کي مي ده ښکلې آئینه ساتلې
دې آئینې راته جانانه ستا څېره ساتلې

نه مي هېرېږي که سي تېر پېړۍ پېړۍ کلونه
ما په خپل ذهن کي د یار د کور کوڅه ساتلې

ډېرو ساتلي دي په زړو کي رنګارنګ کلمې
خو ما محبوبه ستا د نوم ښه کلمه ساتلې

له ډېره وخته مي دښمنه ستا د مرګ له پاره
د زړه په سره پوښ کي ده توره توپنچه ساتلې

چي کوم رهزن یې "قلم مله !" نه کړي چور او تالان
د زړه په ښار کي مي د هیلو قافله ساتلې

حمید

## غزل

خط پر مخ د صنم راغی که سپوږمۍ سوه په هاله کې
دا یې غاښ په خوله کې زېب کا، که ژاله سوه په لاله کې

هسې رنګ سحر و جادو که په نظر د شهلا سترګو
نه یې شان په هند کې سته دی نه ثاني په بنګاله کې
لکه ونښلي مرغی په سست دام د سلو لومو
هسې زه پرېشانو زلفو کښېیستم په کشاله کې
دا زما له غمه شین زړه پکښې خیال د یار د شونډو
هسې رنګ زېب و زینت کا لکه مې په شنه پیاله کې
ما ویل عین ګنه ګل دی، د غنچې په لمن نغښتی
که مې کوت یو ګل اندام و، پروت په سبز و دوشاله کې
سر تر پایه تېغ د هجر، لکه نی سوری سوری کړم
ځکه یم مدام دا هسې په فریاد و په ناله کې

که یار غواړې هومري ژاړه څو درځي "عبدالحمیده"
دا په دا چې دُر مونده په دریاب نه په ناله کې

عبدالقادر ختک

## رباعي

دا پند له مانه په زړه کې یاد کړه
څو دي لاس رسي مروت داد کړه
زړونه د هر چا په احسان ښاد کړه
آزاده بنده کړه، بنده آزاد کړه

قلندر اپرېدی

## رباعیات

پاس په تندي مې آسمان ترپېږي
له تاوه جوشه ماغزه مې لوېږي
که ته رادرومې تلوار راوکړه
په تش کاته دي رنځور ښه کېږي

وفا دي ښه ده جفا دي سوی یم
زه سمندر یم هجران داغلی یم
زه قلندر دي په هجران وسوم
بې رحمي مه کړه در له راغلی یم

دا سرې لمبې مې په تندي بلې دي
تندی مې سوځي کولمې مې جلې دي
خوشحالي نشته د عاشقانو
د هجر هسې ناتارې چلې دي

زه په هجران کې دي مبتلا کړم
غریب هم‌ېش دي په واویلا کړم
د رب دپاره جفا نو پرېږده!
زه قلندر دي میرا جلیا کړم

تر زنې تېرې د زلفو څوکې دي
تر ګل ختلې د بورا نوکې دي
دا قلندر دی د میرا صفت کا
که په چمن کې د بلبل نوکې دي

کاظم خان شیدا

## غزل

څـه افسـون دي پـه مـا وکـړ پـري زاده
چـي يـو دم نـه يـم خـالي سـتا لـه يـاده
زړه مـي ډک لکـه سـپند دی شـعله بويـه
کـه د زړه پـه مـراد وکـړم څـو فريـاده
بهانـه د دې غـرض مگـر شـانه کـړې
تـه يـې لاس ور وړې و زلفـو تـه شمشـاده
چـي آواز دي د تېشـې پـه کوهسـار نسـته
د شـېريني پـه مطلـب لاړي فرهـاده
پـه اسباب کـي مـي زړه بنـد پـه اسباب نـه دی
د چمـن پـه قيـد سـرو ده آزاده
مهيـا ورتـه قفـس د ښـاخ گـل کـړه
کـه څـه رحـم پـه بلبـل کـوې صـياده
چـي پـه هـر منـزل کـي سـر خـوري لکـه شـمع
د هغـه لاري څـه نفـع ده لـه زاده
پـه سـختي کلـه امسـاک د دولـت کېږي
جـوهر نـه ځـي پـه هـيڅ وخـت کـي لـه پـولاده
همېشـه يـې پېـچ و تـاب لکـه جـوهر وي
چـي "شـيدا" راغـی تـر دا حيـرت آبـاده

معزالله

## غزل

مـه کـوه د دښمنـانو پـه مـرگ سـخه
د دوسـتانو دي هـم دا ده لار پـه مخـه
لـه هـر چـا سـره سـينه کـړه خپلـه صـافه
مـه لـه چـا سـره حسـد کـوه مـه رخـه
تربيـت پـه نـااهلانو حبطـه دی
وربـږه نـه سـي د دهقـان پـه زور شـمخه
لـه کمينـه بـه بـې بـدو څـه وانـه وړې
همېشـه لـه گنجـي سـره رژي پخـه
پرېکـول يـې درد لـري پرېښـول يـې عيـب دی
نـاخلف دي د پـدر پـه مـخ کـي زخـه
سـتا د خيـال و سـليمان تـه مـي ځـان ونيـو
د مېږي پـه لاس هـيڅ نسـته بـې ملخـه
"معـزالله" لـره طنـاب د زلفـو ورکـړه

علي خان

## غزل

تـول دي پـه زار او پـه قربـان او پـه جـان بـولي
جـان خو زمـا جـان يې، وايـه جانـه جـان د چـا يـې؟
نـور کـه درلـه جانـه جانـه وايـي لباسـي دي
خود بـه پـري پوهېږې پـه رښتيـا چـي جـان د چـا يـې
زه درپسـي درسـته شـپه پـټ ژاړم لکـه پرخـه
تـه سبا خنـدان لکـه گـل واز گرېـوان د چـا يـې؟

## غزل

بـده جـدايي ده سـره لمبـه د تنـاره ده
زه يـې اور لـړونی کـړم گـرزم پـر انگـاره ده
څـرنگ بـه مـي روغـه د زړه خـوا را دوبـاره سـي
تـر کوچـه يـبلې دا ابرويـو پـه لاره ده
زړه راڅخـه رغـړي، غـم کتـار دی صـورت سـپړي
مرمـه پـه اجـل خـو لـه هجرانـه مـي سـياره ده
تـا چـي د عاشـق خـواري محنـت واړه برباد کـړه
کـوم يـا چـا خـوړلې مـزدوري د مـزداره ده
وصـف بـه د مـخ د دلبـر کـړی "علـي خـان" و
څـه وکـړي چـي تـل د تـورو زلفـو پـر تيـاره ده

کاظم

## غزل

سـتا پـه دور گلسـتان سـو لـه مـا پاتـه
سـير د گلـو د بوسـتان سـو لـه مـا پاتـه
پـه ژړا کـي مـي زړه نـرم لکـه مـوم سـو
هغـه سـخت خـاطر سـندان سـو لـه مـا پاتـه
لـه قالبـه مـرور سـو راتلـه نـه کـا
پـه کوڅـه کـي د يـار ځـان سـو لـه مـا پاتـه
هسـي شـان سـوم پـه هجـران کـي بـې طاقتـه
آه فريـاد نالـه فغـان سـو لـه مـا پاتـه
د مجنـون پـه دود مـي ځـای پـر ويرانـه سـو
کـور او کلـی خانمـان سـو لـه مـا پاتـه
زه غنچـه غونـدي خنـدان ورځنـي لاړم
افسـوس دا "کـاظم" گريـان سـو لـه مـا پاتـه

# د میوند فاتح

لیکوال : محمدعلي

ژباړونکی : عبدالنافع ثنا



د ۱۸۸۰ د جولای پر ۲۷ مه د سهار لس بجې وې چې یوه سپاره ایوب خان ته د برتانویانو له خوا د کار بزونو د نیولو خبر راوړ، چې دا یوه مهمه خبره وه، ځکه دا کار بزونه په هغه وچه دښته کې چې د دوبې سوځوونکې ګرمي هم په اوج کې وه، د اوبو یوازینی سرچینه وه.

له دې امله ایوب خان لومړی اردلي لېوا ته امر وکړ چې په بېړه کار بزونه بیرته ونیسي. دا ګړی د برېتانوي ټوپکو ډزې سوې چې افغانان یې ځیر کړه او یوه ګولی ولاړ د ایوب خان له پاسه ولاړ سره سایوانه ووته. افغانانو چې دا یې خپل کار ګاڼه په ډله ئیزه توګه پر دښمن مخامخ یرغل ور وړ او د "یاچهاریار" په نارو یې فضا ډکه کړه. افغانانو پر غلیم د یو پیاوړي ځپې په دود ور ودانګل او د دښمن د جنګ د ډګر هر لوري یې د ګولیو تر باران لاندې کړ. د افغانانو خولپوري وسلې د برېتانویانو د مارټني هینري او سایډر ټوپکو د سیالی نه وې. یوه آرمسترانګ په یوازې سر د دښمنانو ځواب وایه. د څلور زره هراتي غیر منظم سپرو په سر کې د لویناب په پرشاتګ سره حالت خراب سو. یو ګړی خو برېتانویانو د چلنده وسلو په مټ برې وساته خو افغاني افسرانو له خپلو سر یو سره له پرانستو تورو او نېغو برچو سره پر دښمن ور ودانګل. افغانان وړاندې سوه او په دې توګه یې د جګړې یو ښه نظم هم خپل کړ. انګرېزي خواوې د افغاني پلو او سپرو لخوا په بشپړ ډول چاپېره سوې. افغاني آس سپرو د برېتانوي پلو چاپېر کمربند ټینګ کړ او پراخ خولو ټوپکو یې د برېتانوي لیکو لوری په نښه کړ. وژونکو ډزو سمدستي ډګر په مړو او مرګي حالو ډک کړ.

افغان منظم لښکر د جنرال تاج محمد خان تر قوماندې لاندې چې یوه ستر برید ته چمتو و په ښه نظم سره وړاندې ولاړی. د ډېر بدونکي وړاندې راروانو لښکرو د مخنیوي له پاره جنرال نوټل خپل ټوپکي راوړاندې کړي او ډزې یې پیل کړې.

البته دې ډزو په افغاني اړخ کې زیاته مرګ ژوبله رامنځته کړه خو د غازیانو وړاندې تلونکي ځپې د ټینګښدلو نه وې. دا مهال افغاني توپخانه هم چپ نه وه، کله چې د برېتانوي ډزو په وړاندې د ۳۰ ټوپکو ډزې پورته سوې، ځکه یې پر لړزه راوسته. د ایوب توپخانه ښه سمبال وه او د شېړ و آرمسترانګ ټوپکو په مټ د دښمن ډېر توپکان خاموشه سول. افغاني توپخانه دونه په ځواک کې وه چې دښمن اړ سو ځو خپل هغه له یوه ځایه بل ته یوسي او پلیو ته امر وسو چې پر بوزي ځکه له بشپړي تباهی څخه د خلاصون

يوازينی لاره همدا وه .

درې ساعته د افغاني ډزو تر سيورو لاندي ټېر سول و د ګوليو باران هر لوري په نښه کړ . دا چي د جنګ ميدان يوه پراخه او هواره دښته وه، نو هيڅ ډلي ته پکښي د پټېدو ځای نه و، ځکه نو افغاني ټوپکو برېتانويان په ډېر ښه ډول په نښه کولای سوای . د برېتانويانو غره توپ او پر ځان باندي باور تر سخت آزمايښت لاندي راغی، په شا کي جګړې دا ښووله چي څو ډلي افغانان هلته راغونډ سوي او د غنيمت په ټولولو لګيا دي . د پنډغالي ساتونکي په نارو او سورو سر وه او غوبي او غوځکيان يې هسي پرې ايښي وه چي په دې توګه يې نوره ګډوډي هم رامنځته کړه .

د ماپښين پر دوې بجې يوې افغاني ډلګی پر ښی خزه ځان سمبال کړ او برېتانوي ليکي يې له شا او وړاندي څخه په نښه کړې . اوس نو ټول افغان ځواک ښه منظم او تيارسی و . د دوی ډزو او ر آرام کړ او سپرو او پليو پر دښمن ور ودانګل چي غازيانو د منظم ځواک په ملاتړ د برېتانوي ټوپکوالو نيول او ور څخه ټوپک اخيستل پيل کړه .

د جيکب ټوپکو (Jacob Rofles) چي په کيڼ اړخ کي وه او تر ټولو زياته مرګ ژوبله ور اووښتې وه لومړنی ډله وه چي د بې وسی څرګندونه يې وکړه او ليکي يې په تمبدو سوې . د افسرانو تر ټينګار سربېره چي غوښتل يې خپلو ترهېدلو سرتېرو ته نوې ساه ورکړي، نومړې ډلګی ماته او پر شا ولاړه . په عين وخت کي . . . . . . . چي دې ډلګی هم زيات زيان ليدلی و، لاره خوشي کړه . ۶۶مي ښی ډلګی د خېګ پر لور او کيڼې يې د محمدآباد کلي پر لوري منډه کړه .

باروز سپاره ځواک ته د برېد امر وکړ خو هغوی را پر شا سول . د اوښانو قطار چي د ځواک ستره ټولګی وه او خپله د جنرال په لاس کي وه، په تېښته سوه . پس قراول (وروستنی لښکر) چي د تورن Oliver په لاس کي و د داسي وېري او چيغو په حال کي و چي بيانول يې ګران دي، د واټ په اوږدو کي د انسانانو بې پايه لړی تر ستر ګو کېده چي چيغي، بغاري، د اوښانو رمباړې، د کچر سپرو ناري، د سرتېرو چيغي او تر ټولو اوچت د غازيانو ناري تر غوږو کېدې . پلي سرتېري او د کمپ ساتونکي سره ګډ سوي وه . آسونه چي له ټپونو، کم ځواکی او تندې څخه يې ژبي راوتلي وې، اوښان او کچرې سره ګډې وې، د نظم او کرارۍ راوستلو هيڅ لاره نه وه او اسکېرلي ټپيان دابد له پاره په خوب ويده سول .

افغاني ډلو د بدمرغه تښتېدونکو تعقيب ته ادامه ورکړه، او پر هر يوه چي به يې لاس بر کېده سر يې ور پرې کاوه . د نژدې کليو خلک هم راووته او څه چي يې په وسه کېده هغه يې لوټ کړه .

د شاهي آسي ځواک لفټيننټ يوازينی کس و چي بندي ونيول سو . St. Col. John او د هغه لاس پوځي ولي شېرعلي تر دې وړاندي چي پر برېتانويانو قيامت جوړ سي له ډګره تښتېدلي وه . د برېتانويانو د تښتې لاره په خلکو او سرتېرو تړل سوې وه . د توپکو د ژغورني ناکامه هڅې وسوې څو افغاني لاسونو ته ونه لوېږي خو آخر ۲۴ توپکان افغاني لوري ونيول . برېتانويانو د يوازې دوو توپکونو خبره تائيد کړه .

د ميوند د جګړې داستان به د يوې ډلي برېتانوي پليو د ۶۶مي ټولګی له يادښت څخه پرته چي تر آخري سلګی پوري وجنګېدل بشپړ نه وي . نومړي کسان چي خپل ځانونه يې د خپل بيرغ د لوړ ساتلو له پاره ځار کړل په خپلو دوستانو او دښمنانو کي تلپاته نوم پر ښود . نومړو د دې له پاره چي د خپلو ملګرو پر شاتګ په پرمختګ واړوي په خپلو ناکامو هڅو سره خيګ ته نژدې د تاکانو د جوو د خېينو د بوالو شاته ځانونه خزه کړل او پر دښمن يې ګولی واورولې . دې کار دښمن د يو ګړي له پاره ليري و ساته خو آخر د دې ډلي يولس تنه ژوندي سرتېري له ښه راووتل او مخامخ يې جګړه پيل کړه تر څو چي آخرنی سرتېری يې راغوځار سو او په دې سره مقاومت پای ته ورسېد .

که د دې زړه ورو سرتېرو مقاومت نه وای، نو بشپړ برېتانوي ځواک به له منځه تللی وای، د انګرېزانو تعقيب ډېره ادامه ونه موندل ځکه ډېری

افغانان راوگرځېدل او د غنيمت په لوټلو لگيا سول .

د سر تېرو وسلو او سامانونو تـه زيـان واوښـت، نژدې هر څه چي د بريتانويانو سره وه د افغانانو لاسونو تـه ولوېدل او هغـه سر تېري او د کمـپ ساتونکي چي کندهار ته ورسېدل په ناوړه حالت کي وه . کلـه چي داآوازه کنـدهار تـه راورسېدل نو خلـک پـه وېره کي سـول او ټـول پـه ځغاسـته لـه ښـاره ووتـل . ان پـه انگلستان کي هـم د دې لـويي مـاتي او شـرم خبـر ډېـر شـديـد وځـکـه پـه لومـړي تلگـرام کـي ويـل سـوي وه چـي د جنـرال بـاروز ټولـه ځواک له منځه تللی دی .

د ميوند جگړه د افغاني تاريخ يوه مهمـه پېښـه ده، دا د هغه نه ماتېدونکي پـوځ پـر نامه يـو لوی داغ وچي ټولـه هند يې پـه هغـه اسانی سره تر پښو کښلی و، بريتانويـان خپلـه هـم دا منـي چـي دا د بريتـانوي پـوځ لـه پـاره پـه تاريخ کي تر ټولو لوی گذار و .

په دې سره د افغانستان د وېشلو پلان هـم مـات سـو، غـره افغـان شـهزاده تـر لمـر سـپينه ور وښـوول چـي پـه کنـدهار کـي د يـو دونـه لـوی ځواک ساتني سره سره هـم خطـر لـه منځـه نـه ځـي . د ميونـد تـر پېښـي وروسـته د دې سـوال هــم نــه وچــي انگرېـزان دي د افغانسـتان کومه برخه پـه مستقيم ډول يا د کوم گوډاگي پـه وسيله پـه واک کي وساتي .

بوازينـــي لار ورتـــه دا پاته وه چي هيواد ځونه چي ژر کېږي په عزت بانـدي پر ېږدي، د ميوند د خبر په خپرېدو تر خوجک او بولان پاسـه ان خپلـه کوټـه او پـه ټـول هيواد کـي پراتـه قبايـل راوپاڅېـدل او ټولـو پـه يـوه دم پـر بريتـانوي پوسـتوور ودانگل . دوی د پاسونو د نيولو هڅه وکړه او ټول هغـه څـه يې چي پـه وس کـي وه وکـړه چي د انگرېزانـو د ارتباط مزي پرې کړي څو نور پوځ او يا سامان کنـدهار ته ونه لېږدول سي .



ایوب خان د میوند تر بري وروسته دا تېروتنه وکړه چې سمدستي له موقع څخه په ګټه اخیستنه له خپل ځواک سره په ملګرتیا د کندهار پر لور ونه خوځېد . د تښتېدونکي دښمن تعقیبول یې سپاره پوځ او غازیانو ته پرېښودل او خپله څو ورځې په میوند کې پاته سو، څو پر غازیانو غنیمت ووېشي او خپل لښکر له سره منظم کړي، کندهار ته له روانېدو مخکې ده د مشرانو سره غونډه وکړه څو د مخ په وړاندي چارو په اړه ورسره خبري وکړي، د ده خپله دا خوښه وه چې له کندهاره صرف نظر وکړي او غزني ته په تلو د هغه ځای غازیان په خپله پلوي او د کافرانو په وړاندي راوپاخوي او د جهاد په اعلانولو کافران له هیواده وشړي او د تخت هیله من عبدالرحمن بیرته روسي ترکستان ته ولاړ سي او بریتانوي ځواک په ښار کې دننه ختم کړي، هغه چې تر نور پرمختګ وړاندي د کندهار د نیولو پلویان وه پر خپل نظر ټینګ وه او ایوب خان مجبور سو چې خپل اصلي پلان ته تغیر ورکړي . ده پر کندهار ور ودانګل او په یوه داسي ځای کې تم سو چې د ښار د محاصرې منظم شکل یې درلود .

دا د ایوب خان تر ټولو ستره تېروتنه وه چې بالآخره د ده په ماته تمامه سوه . دی پوهېدی چې ملامشک عالم او د هغه غلزي پلویان به د کندهار په شمال کې د غلزیو په کلات کې له ده سره د انګرېزانو په وړاندي یو سي او دی په دې هم پوهیدی چې په عین وخت کې به د کابل په شمال کې د کوهستان او پروان خانان او خلک هم د ده په پلوي راپاخي خو ایوب خان د څو خان غوښتونکو سلاکارانو چې وفاداري یې هم په شک کې وه، په خبرو تېروتلو سره د خپل مشر ورور یعقوب خان په شان دا لویه موقع له لاسه ورکړه . د دې په خاطر چې په کندهار کې د خپل ځواک په ښکاره کولو بریتانوي لښکر (ګارنزون) له منځه یوسي او بیا د خپلي اصلي موخي (کابل) پر لور وخوځي . د کندهار په تمه کښېنستلو سره ایوب نه یوازې دا چې د جنګ ارزښتمن وخت یې له لاسه ورکړ بلکې انګرېزانو ته یې موقع ورکړه چې د ده لښکر ته ستر زیان واړوي .

سردار طاهر خان (۱۹۳۵ مړ) چې د ایوب خان د اکا له زامنو څخه او نږدې ملګري یې و او له کابل څخه راتلونکي جنرال رابرټس د پس قراول د ځېلو چاره یې هم پر غاړه وه وایي چې ایوب خان یو بې چل وله یا په بله اصطلاح بې طرحي او بې پروا سړی و، چې دې خبري له هغه حقیقت سره یو ځای چې ډېری لښکر یې له غیر منظمو جوړ و، دی دې ته راوکښی چې آسانه لار یعني د کندهار محاصره غوره کړي .

ایوب خان نږدې په یوه اوونۍ کې کندهار ته ورسېد، دی پر سیده او د آسانو پر لار راغی چې د اګست پر شپږمه کوهکران ته راورسېد . د دې کرار پرمختګ لامل د ده د سرتېرو رنګارنګ طبیعتونه وه چې هر یو پر خپله خوښه تلی او کنټرولول یې ګران وه . کله چې دی کندهار ته ورسېد او ښار یې کلابند کړ نو ویې لیدل چې ډېری سرتېرو یې د خلکو سره ناوړه چلند پیل کړ او د شاوخوا کلیو د خلکو په لوټلو سره کورونو ته وتښتېدل . کندهار ته په رسېدلو کې د ځنډ بل لامل د وسلې کمښت و، ځکه له هلمنده په چټک راتګ سره سردار ډېر بې سامان راغلی وا او ډېر سامانونه او پوځي شیان یې تر شا پرېښوول . بریتانویانو له موقع څخه په ګټه اخیستلو چوڼیانې پرېښوولې او ځانونه یې په خپل مرکز کې منظم کړل او د دفاع په ټینګولو یې لاس پوري کړ . د هري ورځې په تېرېدلو د ایوب د بري شونتیاوي په کمېدلو سوې .

**د کندهار کلابندي :-**

په چهل زینه کې د خپل مرکز تر جوړولو وروسته ایوب خان د کندهار د نیولو له پاره جګړه پیل کړه، د ده ټولګي د شاوخوا غرونو څخه شپه او ورځ لګیا وې څو دښمن تسلیمېدو ته اړ کړي . بریتانوي پوځ هم چوپ نه و او افغانان یې اړ ایستل چې خپل مرکز کوه نګر ته چې لږ خوندي و ولېږدوي خو دا له پیله څرګنده وه چې افغانانو محض خپل وخت ضایع کاوه او په دې حالت کې نه وه چې ښار په زوره ونیسي . دا هم ویل کېږي چې ایوب خان د خپلو افسرانو د صلاح پر اساس د کلابند سوي پوځ سره اړیکې هم ټینګې

کړې . یوې سپین سرې ښځې بې بې هوا چې د سردار رحمدل خان کونډه وه د ایوب په اسازیتوب له ST.John سره خبرې پیل کړې .

ویل کېږي چې بر تانوي سیاسي چارواکو له ایوب ځخه ځلوېښت ورځې مهلت واخیست چې د دې ورځو په تېر ېدلو کې به ښار سپاري خو کله چې د غلزیو کلات ته د جنرال رابرټس له رار سېدو خبر سول نو یې د موافقت لیک شرایط بیر ته رد کړل . د میوند د ماتي خبر نه یوازي په هند کې بلکې په انګلستان کې هم په ډېره بې کراری سره ترلاسه سو . کله چې دا خبر شملې ته ورسېد نو د هند حکومت د پېښې د اغېزو په وړاندلید سره سمدلاسه د کندهار د کلابند ځواک د ژغورلو له پاره چمتووالی پیل کړ . امر صادر سو چې د بولان پاس له لارې دې نور زیات اضافي ځواک له هند ځخه ولېږل سي . په کوټه کې د حاکم اعلی استازې ته خبر ور کول سو چې له انګلستانه ځخه ملاتړي هم رارسېدونکي دي ځو شونې اړتیاوې پوره کړي . د کلات خان بریتانوي ځواکونو ته د هر راز مرستې ډاډ ور کړ چې د خبر په اورېدلو یې د انګلستان ملکې د بې ساري ډاډ خر ګندونه وکړه .

Griffin له کابله ځخه د یوه تلګرام په ترځ کې د هند د بهرنیو چارو وزیر Lyall ته د حالاتو د حساسوالي په هکله داسې ولیکل :

"د کندهار خبر دلته حالات په بشپړ ډول بدل کړي او که چیرې ایوب ژر تر ژره او په پر بکړې ډول مات نه کړل سي نو کېدای سي حالات خراب سي . امیر به د دې جوګه نه وي چې د بریالي ایوب په وړاندې ودرېږي . د ده ځواکونه به دی پرېږدي او کېدای سي بغاوت وکړي . که چیرې ایوب غزني ته ورسېد نو ټول هیواد به ورسره یو ځای سي" .

عبدالرحمن هم په کابل کې د خرابېدونکي وضعې په نظر کې نیولو سره له انګرېزانو سره موافقې ته ورسېد او همدا راز یې له غلزیو مشرانو ځخه د هغوی له سیمو د انګرېزانو له خوندي تېرېدنې د ډاډمنولو هو کړه واخیسته .

Stewart او Robert باور درلود چې کندهار تر کابل ښه ژغورل کېدای سي ځکه یې نو کندهار ته د پوځ لېږلو له پاره په لویه کچه تیاری پیل کړ . دا چاره Robert ته وسپارل سوه .

کله چې رابرټس د کابل ـ کندهار د محاذ ځواک قوماندې پر غاړه اخیستل، د کلابند ښار دننه او دباندې لویې پېښې رامنځته سوې . د لسو ورځو له کلابندۍ ځخه وروسته د ایوب زړه ته ولوېدل چې کندهار د وسلې په زور نه سي نیولای . خود ۱۸۸۰ د اګست پر ۱۶ مه بریتانویانو جنګ ودراوه چې دې کار د کلابندۍ کوونکو حوصلې لوړې کړې او د ښار کلابندي تر هر کله سخته کړه . په دا سبا لویه خوشحالي خپره سوه ځکه چې ویل کېده چې انګرېزان بیر ته هند ته ستنېږي .

ایوب خان خپله هوښیاري وکړه او ملاتړي ځواک یې چمتو کړ ځو چې وخت یې راسي نو د کندهار د ېوالونو ته یې ورسوي . افغانان د انګرېزانو د وتلو په خبر سخت خوشحاله سوه چې له ډېرو احساساتو د قابو کېدني نه وه . د لېونو غونډي پر د ېوالو ور پورته سوه چې په مقابل کې د ګولیو باران وورباندې جوړ سو .

په عین حال کې د بریتانوي پلیو یوې لیوا د کابل دروازې له لارې او بلې د حضرت جي بابا له لارې راوادانګل ځو افغانان راچاپېره کړي چې اوس نو د کلا او ډګر په منځ کې پاته وه .

ایوب خان چې حالات نازک ولیدل نو سمدلاسه یې ملاتړي ځواک راوخوځاوه چې حالات یې د ده په ګټه کړه . نه یوازې دا چې انګرېزان مات کړل سول بلکې افغانانو هغه ټوپکې چې د جګړې په لومړیو کې یې بایللي وې هم په لاس راوړې . په دې توګه افغانانو د میوند تر جګړې راوروسته په یوه میاشت کې یوه بله لویه جګړه وګټله چې د ده خوجې جګړه یې بولي او یا انګرېزان یې د اګست د شپاړسمي پېښه (Sortie of ۱۶ th August) بولي . انګرېزانو ته سخته مرګ ژوبله واوښتل چې پکښې بریډ جنرال Brooke هم ووژل سو .         نور هم سته . . .

لیکنه نثاراحمد اریا

# د سپېڅلي "د اوږو بار" یوه ښه هڅه ده

د "اوږو بار" د ځوان شاعر او لیکوال ښاغلي محمد ابراهیم سپېڅلي د لنډې کیسې سرلیک دی، دغه کیسه د مروند مجلې د ۱۳۸۴ل کال د وري او غويي د میاشتو او لمړي کال په دریمه ګڼه کي چاپ سوې ده، د کیسې تر لوستلو ورسته پر کیسه د څه لیکلو خیال راولوېد، د دې دوه لاملونه وو، یو دا چي ښاغلی سپېڅلی مې په دې لمړنیو هڅو (لمړنی هڅې مې ځکه یادي کړې چي تر دې مخکي مې د سپېڅلي صاحب یوه بله کیسه "یاري د جګې نجلۍ" خوند کړي" هم کتلې وه او په دې کیسه کي یې تر هغې ښه پرمختګ کړی) کي تر یوه حده بریالی راته ښکاره سو او بل لامل دا چي د دې سیمې د ځوانو لیکوالو پام مې دې لور ته را اړولی وي.

ښه اوس به راسو کیسې ته. زه غواړم پر کیسه باندي په تدریجي ډول تر خپله وسه څه ووایم. نو ځکه تر هر څه مخکي د کیسې پر موضوع رغېږم. د کیسې موضوع په کوچنیوالي کي د نجونو او هلکانو کوژده کول یا په نامه کول دي که څه هم دا زړه موضوع ده او نوري کیسې هم پر لیکل سوي دي خو ښاغلی سپېڅلی په دې توانېدلی دی چي د دې موضوع نوې زاویه تر لیکني لاندي ونیسي، او دا د ستاینې وړ خبره ده. زما په نظر تر نوې موضوع پر زړه موضوع کار کول ډېر مشکل دی او د کامیابۍ چانس یې هم کم وي خو که څوک په دې وتوانیږي چي زړې موضوع ته نوی رنګ ورکړي دا به بیا د کمال وړ خبره ده او سپېڅلي صاحب دا کمال کړی دی.

تر موضوع ورسته د کیسې سرلیک ته راځو، زموږ یو ښه کیسه لیکوال د کیسې د سرلیک په ټاکلو کي پاته راغي علت یې ښایي دا وي چي دوی دې ته چنداني پام نه کوي او دومره مهم یې نه ګڼي او یا که زما وارو وي نو توانیږي نه، حال دا چي سرلیک د کیسې د موضوع په روښانه کولو کي لوی رول لوبوي او د ښاغلي سپېڅلي د کیسې له سرلیک څخه داسي څرګندیږي چي ده د سرلیک دغه اهمیت درک کړی دی او خپلي کیسې ته یې "د اوږو بار" ښه مناسب سرلیک ټاکلی دی، زه د ده د کیسې سرلیک ځکه پوره بریالی بولم چي یو خو د کیسې له متن څخه غوره سوی دی، بل د کیسې د اخري دوو جملو څخه دی او تر ټولو مهمه لا دا چي د کیسې له کلایمس(Climax) جملې څخه کلایمکس توری هم دی.

له سرلیک ورسته د کیسې له پیل سره مخ کېږو، سپېڅلي صاحب خپله کیسه داسي پیل کړې ده" چي کله به یې همزولو او یا هم په کور کي بل چا نوم ورته یاد کړی نو له حیا څخه به یې دواړه باړخوګان لکه سره ګلان تک سره شول او پر شونډو به یې یوه نرمه مسکا تېره شوه...". زما په فکر د کیسې پیل هم مناسب دی ځکه په نازکو جملو سره سوی دی او په دغه نازکوالي کي کشش دی چي لوستونکي ته تلوسه ورکوي. خو که په پیل کي د دې جملو پر ځای د پېغلو د ناستي یوه همداسي صحنه ترسیم سوې او یا په بله وینا د یوې داسي صحنې ژوندی تصویر وړاندي سوی وای چي په هغه کي پېغلې ناستي وي او د کیسې پر کرکټر جمله بازي کوي نو د کیسې پیل او کیسه به یې تر دې ډېره خونډوره او راژوندی کړې وای. ځکه منظر کشي یا د صحنې ترسیم

کیسې ته روح ورکوي مانا دا چي کیسې ته داسي رنګ ورکوي لکه لوستونکی چي هغه پېښه یا صحنه په خپلو سترګو ویني او یا لکه هغه چي خپله پکښې دخیل وي او بې ترسیمه یا بې منظرکشۍ کیسه داسي وي لکه لوستونکي ته چي څوک کیسه کوي. دا دوهم ډول یې هم نسبي ردېدای ځکه کله نا کله لیکوال له داسي موضوع سره مخ سي چي په هغه کي د ترسیم ګنجایش بیخي نه وي خو که هڅه وسي چي کیسه په ترسیمي ډول ولیکل سي نو له یوه لوري به مو لوستونکی خوښ ساتلی وي او له بلي خوا به مو خپله کیسه د بریالیتوب حد ته ور لنډه کړې وي.

د کیسې له پیل سره سم لوستونکی د کیسې غوټې ته په تمه وي خو په دې کیسه کي تر ډېره د غوټې درک نه لګېږي او ښه ورسته یوه تته غوټه چي د نجلۍ واده به کله کېږي؟ رامنځته کېږي. نو دلته پوښتنه پیدا کېږي چي ایا دغه غوټه د دې کیسې غاړه ایستلای سي؟ په ځواب کي دومره وایم چي که څوک د کیسې لنډوالی او د کیسې د پیل نازکوالي جاذبوالی په نظر کي ونیسي نو ښایي ووایي چي "هو" خو دا هم باید هېره نه کړو چي د لا ښه والي لپاره باید نور کوشش هم سوی وای او په اوسني حالت کي لیکوال د غوټې په پیدا کولو کي پوره بریالی نه دی.

تر غوټې ورسته د کیسې د کرکټر معرفي ته راځم. په دې برخه کي ښاغلی سپېڅلی په یوه ځای کي یو څه بریالی او بل ځای یې چنداني خوند نسته. د کیسې د کرکټر د معرفۍ په اړه کیسه پوهان وایي چي د لنډي کیسې لنډوالی او دا چي لوستونکی باید خپله د کرکټر له حرکاتو څخه د هغه شخصیت درک کړي لیکوال ته دا اجازه نه راکوي چي موږ په کیسه کي د کرکټر پر پېژندنه باندي وږغېږو بلکي لیکوال باید د کرکټر له کړو وړو، خبرو او ناستي پاستي څخه لوستونکي ته وښیي چي هغه د څنګه خوی مالک دی. د مثال په ډول د کیسې په دا جمله کي "چي کله به یې همزولو او یا هم په کور کي بل چا نوم ورته یاد کړ نو له حیا څخه به یې دواړه بارخوګان لکه سره ګلان تک سره شول..." د بارخوګانو سره کېدل لوستونکي ته دا ښیي چي د کیسې کرکټر څومره شرمناکه او حیاناکه دی. نور د حیا د توري د راوړلو ضرورت نسته چي لیکوال ووایي چي "له حیا څخه به یې بارخوګان تک سره سول" خیر په دې ځای کي د لیکوال د کرکټر راپېژندني کار تر ډېره ښه دی خو دا چي په کیسه کي بل ځای د کرکټر د معرفۍ په اړه لیکي "دا نه یوازي ښایسته بلکي د لوړي حیا او ښو اخلاقو څښتنه وه..." دا په کیسه کي په هیڅ ډول د منلو وړ نه دي ځکه یو خو تکرار دی او بل قضاوت دی.

مخکي تر دې چي د کیسې پای ته ولاړ سم د کیسې د محتوا په اړه دومره وایم چي د کیسې محتوا هم ګذاریي ده ځکه د محتوا ډېره برخه د کرکټر پر پېژندنه او د واده د کېدو په خیالونو ډکه سوې ده. همداسي د کیسې پلاټ هم ګذاریي دی خو د کیسې وحدت تاثیر ډېر قوي دی چي دا د لیکوال لوی بری دی او زه یې ستاینه کوم. پاته سو د کیسې پای. د کیسې غښتلی پای هغه دی چي کله کیسه اوج ته ورسېږي نو په یوه یا دوو جملو کي کیسه پای ته ورسوي او دغه یوه یا دوې جملې ټوله کیسه لوستونکي ته تشریح کړي او ټوله کیسه بېرته زموږ تر ذهن تېره کړي. له ښه مرغه د ښاغلي سپېڅلي صاحب د کیسې پای همدا خوبي لري او لیکوال په دې بریالی سوی دی چي خپلي کیسې ته په دې جملې سره چي "زه خپل ځان نه شم ساتلای نو تا د اوږو بار لا څه کوم. وزه زما له کوره..." یو ښه کامیابه کلا یمکس لرونکی پای ورکړي.

په ټولیز ډول دا کیسه مناسبه کیسه وه. زما په فکر که چیري لږ نور فکر پر سوی وای او یو څه نوره په دماغ کي شاربل سوې وای نو شاید تر دې ډېره بریالۍ کیسه تري جوړه سوې وای خو پر همدې حالت هم د ګران یار سپېڅلي صاحب د دې نسبتاً ښې کیسې ستاینه کوم او د دې سیمې د نورو ځوانانو په شمول یې همداسي او تر دې لا ښه کیسو ته هرکلی وایم.

❁ عبدالمجید بابی :-

# بلقیسه څوک وه؟

بلقیسه د "سبا" شاه مېرمنه وه، همدا بلقیسه د کړ کېښ د ښکلو او وتلو ښځو څخه وه چې ژوند یې ډېر و یوې کیسې ته ورته والی لری . دغه ښځه چې د ډېرو لرغونو مهالونو یوه ښکلې ښځه وه په زرونو کلونه دمخه یې ژوند کاوه .

**د بلقیسي نوم او تورات :-**

د بلقیسي یادونه په ښه ځرگند تیا سره د تورات په اسماني کتاب کښي سوې ده . تورات د سلېمان (ع) و هیواد ته د شاه مېرمني بلقیسي د ورتلو سربېره د سلېمان (ع) سره د هغې د خبرو اترو په اړه هم ښکاره ټکي لري .

په دې اړه تورات زیاتوي :

د سبا شاه مېرمني چې د سلېمان (ع) په اړه ځرگندوني اورېدلي وې نو د همدې حکیم سړي د پوهې د ازمویلو له پاره د سپرو د لویي ډلې سره چې ډېر زیات شمېر د سرو او سپینو زرو او همدا ډول د لوړ بیو کاڼو او نورو توکیو څخه بار اوښان هم ورسره وه . د سلېمان (ع) ښار ته ورغله .

سلېمان (ع) په خپل پلازغولي کښي د هغې څخه د شانه ډک هر کلي وکړ . وروسته بلقیسي د سلېمان (ع) څخه پوښتني وکړې او د هغه له خولې یې داسي جوابونه واورېدل چې د هغه د لوړي پېژندني ښکارندویي یې کوله .

بلقیسي چې د سلېمان پوهه وازمویله او هغه کور چې سلېمان د خدای د خوښي له پاره جوړ کړی او په هغه کي هغه لوی او پراخ کوندری، خواړه، خوړې، ډول ـ ډول خوړوبي (شربتونه) او د هغو د سمون او اوډني له پاره ګڼ شمېر چوپړ وهونکي د ښکلو کالیو سره ولیدل نو یې د سلېمان او دده د پلازغولي لوړ برم ومانه او د دې څخه زیاتره یې هغه څه واورېدل او ډېر څه یې ولیدل چې په هغه بر خه کښي نورو نه وه ورته ویلي . د سبا شاه مېرمني و سلېمان (ع) ته د ده د لا ښکمرغی او سوکالی له پاره لاس پورته کړ او هغه څه چې یې د ځانه سره راوړي وه هغه یې سلېمان (ع) ته وړاندي کړه او سلېمان (ع) هم د بلقیسي له پاره خپلي پېرزوینې وړاندي کړې او په دې توگه دا مېرمن د اورشیلم څخه و خپلي سیمي ته ستنه سوه .

**د بلقیسي یادونه په پاک قران کښي :-**

د پاک قرآن د (نمل) په سوره کښي هم د سبا د شاه مېرمني بلقیسي څخه یادونه سوېده .

فتح البیان د پاک قرآن د نمل د سورې د (۱۴) آیت په لا ځرگند تیا کښي لیکي چې د داود (ع) ژوند سل کاله و چې د موسی (ع) څخه پنځه سوه کاله وروسته پیدا سوی و . دغه داود (ع) (۱۹) اولاده درلوده چې یوازي یې سلېمان (ع) پکښي

پیغمبر سوی دی چې د ده او د حضرت محمد ﷺ تر منځ زر کاله واټن و .

همدارنګه روح البیان د همدې سورې د ۱۶ م آیت په لاخر ګند تیا کښې لیکي چې د داود ﷺ پوهه، پیغمبري او پاچهي د داود ﷺ د ټولو اولادونو په منځ کښې و سلیمان ﷺ ته ورسېده .

ویل کېږي چې د ده ځواکمنه پاچهي او په بني اسرائیلو کښې یې پیغمبري د عیسی ﷺ د زېږېدو څخه مخکې د ۹۷۰ کال څخه تر ۹۳۵ کال پوري وه، هغوی پر باد واکمن او د څارویو په ژبه پوهېده، داسې ګوتمې یې هم لرله چې اسم اعظم ورپکښې انځور و چې د هغه پر بنسټ یې پر انسانانو، پېریانانو، څارویو او الوتونکو باندې واکمنې چلوله چې د دوی د پلازغولې برم او د ګوتمې اغیزې د ادبیاتو د زیاتري برخې منځپانګه هم ګرځېدلې ده .

همدا ډول د نمل د سورت د ۴۳ م آیت په لاخر ګند تیا کښې روح البیان دا هم څرګنده کړې چې بلقیسې چې د سرو زرو خښتې د سوغات په توګه سلیمان ﷺ ته ورلېږلې کړې نو د هغې لېږونکي په پلازغولي کښې وکتل چې د سلېمان د پلازغولي ټوله مخ د سرو زرو په خښتو پوښلی و . نو په دې لیدو سره هغه د ځمکې تیا سره مخ سوه .

هغه څه چې د بلقیسي په اړه د ډېرو له لوري وړاندې ډاډه سوي دا دي چې سلېمان ﷺ چې په خپل پلازغولي کښې د سبا د شاه مېرمنې تود او د برمه ډک هرکلی وکړ تر لیدو او کتلو وروسته د سلېمان ﷺ د هغې څخه ښه راغله او هغه یې د ښځو د لرلو سره سره خپله مېرمن وګرځول .

د سباه شاه مېرمنې بلقیسې د خپل وتلې ښایست، او هم د خپلو ښایسته او مینه ناکو کړنو پر بنسټ د سلېمان ﷺ په زړه کښې دا ور واچول خو د غزل ویلو په کړ کېښ کښې تر ټولو لوړه او بېساري بدله چې د بدلو بدله بلل کېږي ووایي .

د پاک قرآن د لاخر ګند تیا او روښانتیا پوهانو په یمن کښې د سبا د شاه مېرمنې (بلقیسې) او په بیت المقدس کښې د واکمن سلېمان ﷺ په اړه تر دې زیات څه نه دي روښانه کړي او له همدې روښانتیا څخه ښکاري چې د همدغې شاه مېرمنې نوم بلقیسه او سلېمان ﷺ هغه د خپلې ښځې پتوګه غوره کړې وه . د دوی واده تر نولس کاله پوري غځېدلې و او سلېمان ﷺ د همدغو کلونو په اوږدو کښې د سبا تر ښاره چې بلقیسې پر هغه واکمنې چلوله د خپلې مېرمنې د کتوله پاره تلې همدې ډول د لرغونو مهالونو همدا مېړه او مېرمن یو د بله لیرې اوسېدله .

**مصري بلقیسه :-**

(بوسیفوس) کړ کېښ لیکونکی په دې ګروه دی چې د سبا شاه مېرمنه مصري وه او پر مصر او حبشه یې واکمنې چلوله چې د (نیکولیس) په نوم یادېدله . یوه برخه نور کړ کېښ لیکونکي هم په دې ګروه دي چې همدا (نیکولیس) په عربي ژبه کښې اوښتې او بلقیس سوېده .

تر بوسیفوس کړ کېښ کښونکي وروسته د اسرائیلو نورو کړ کېښ لیکونکو هم تر هغه ځایه چې د خیالونو سیوري یې خپرېده د بلقیسې او سلېمان ﷺ په اړه د دوی د پوښتنو ځوابونو، ګرانښت او مینې په اړه ډېر څه لیکلي دي .

آن چې دغه ګرانښت یې د روحي اړیکو پرته پر کړو لارو هم ورسم کړیدي .

**حبشي بلقیسه :-**

د حبشې اوسېدونکي د بلقیسې په اړه بل ډول خیالونه لري او دغه خیالونه یې د یوې سپېڅلې ګروه تر پولې رسېږي .

د بلقیسې نکل د حبشیانو د (کبراناګشتای) په کتاب کښې د ( پاچهانو د ویاړ) مانا لري راغلی دی . حبشیانو چې بلقیسه د "ماکیدا" په نوم یاده کړېده، نکل یې دا ډول غځوي کله چې بلقیسه یا (ماکیدا) و بیت المقدس یا اورشیلم ته د

سلېمان ﷺ د پوهي د ځر ګند تيا لـه پاره ولاړه تر کتو وروسته سلېمان هغه وهڅوله ځو د ده سره واده وکړي .

ماکيدا دا بلنه ومنل، د دوی د واده په لومړيو کښي چي ماکيدا بير ته خپل هيواد تـه راستنه سوه هلتـه يې زوی پيـدا سو چي د هغـه نوم يې (منليک) کښېښود او مانا يې د (پوه زوی) ده د دې ځايه دی چي دغـه نوم بيا په وروسته کښي د حبشې نورو پاچهانو هم د خپل نوم سره تاړه او په دې ګروه وه چي هغوی هم د بلقيسي د لويي وياړ لري .

کله چي د بلقيسي زوی لوی سو . بلقيسي هغه خپل پلار سلېمان ﷺ ته ولېږه ځو هلته په يورشيلم کښي د خپل پلار څخه پوهه او معرفت زده کړي . د پوهي د تر لاسه کېدو وروسته دغـه هلک بير تـه پـه حبشه کښي د خپلي مور بلقيسي سره يو ځای سو او بيا هلته تر واکمنۍ وروسېد او همدا ځوان يوازنی ځوک و چي موسوي دين يې د افريقا لويي وچي تـه راوړ چي حبشيانو همدا دين د عيسی ﷺ تر پيغمبرۍ پوري وپاله .

لنډه دا چـي همـدا منليـک نـوم چـي د بلقيسـي د زوی و د حبشې تـر وروستي واکمن پوري د هغوی د نومونو سره تړلی و .

د فرانسې يوه وتلي ليکوال (آناتول فرانس) پخپـل نکـل کـي چـي د بالتازار په نوم دی د سباه د شاه مېرمني يادونه کوي او د دې نکلـه داسي ځر ګند ېږي چي بلقيسه حبشۍ وه .

**سوريايي بلقيسه :-**

د انګلستان دوه کـړ کېښ ليکـونکي (نلسون) او کـاميرر پـدې ګـروه دي چي (سبا) ښار پـه هغـه ځـای کـي چـي اوس د شـام د ګـوف سيمه ده پروت و .

ځيني نور بيا وايي د سبا ښار هغه ځای و چي بيا د (تدمر) لرغوني ښار د هغه پر کنډوالو باندي ودان سوی دی دلته د واکمنۍ برخـه تـل د ښځـو وه او بلقيسه هم د همدې ښار د نوموتو شاه مېرمنو څخه بلل کېده .

لکه (زنوبيا) چي د همدې (تدمر) د ښار يوه نوموتې واکمنه وه .

يو بل څه چـي دا تـرې ښـکاري چـي بلقيسـه د سوريې د هيـواده وه دا دی چـي پـه دمشق کـي د امويـانو د واکمنـۍ پـر مهـال د بلقيسـي موميـايي سوی پړی (بدن) يې په همدې ښار کښي پيدا کړی دی خو ځيني بيا وايي سايي دا پړی د هغې د نامه سره تړل سوی وي .

**يمنی بلقيسه :-**

د کړ کېښ ليکونکو يوه بله ډله بيا پـدې ګـروه دي چـي بلقيسـه بايـد يوه عربه شاه مېرمنه وبلل سي، ځکه چي هغه د يمن له هيواده څخـه وه او سبا هم هغه ښار و چي په يمن کي پروت و .

دا ملکه چي د سلېمان د ژبات واک څخـه پـه ښـره کـي وه هلتـه يې و هغه ته ځان ورساوه او د هغه سره يې د ښو اړيکو تړون وکړ . البته دا هم بايـد د پامـه ونـه لوېـږي چـي بلقيسه ډېره ښايسته وه هغې تـه د سـلېمان ﷺ پـه زړه کښـي د خپلـي ټـولي پـوهي او معرفـت د لرلو سره سره ځای پيدا سو .

کـړ کېښ ليکـونکي د سـبا ښار د يمن د پلازمېني صنعا پـه شـمال ختـيځ يـو سـل و پنځـوس کيلـومتري کښـي ګنـي او اوس هم هلتـه د کنډوالو يوه غونـډۍ ستـه چـي د بلقيسي معبد نومېږي او د هغـه ځـای اوسـېدونکي پـه دې ګـروه دي چـي دا غونـډۍ د بلقيسـي د برمـه څخـه د ډکـي مانۍ وروستۍ پاته شوني دي .

**د سلېمان بلقيسه :-**

پـه کـړ کېښ کښـي د يـوې بلقيسـي او د سـبا د يـوې شـاه مېرمني څخه ډېر دا ډول نومونه يـاد سـوي دي او د هـري يـوې پلويـان وايـي چـي د سبا ملکـه د دوی بلقيســـه ده . چـــي د حضـرت سـلېمان ﷺ د ليـدو لـه پاره يورشيلم تـه ولاړه او د هغه په زړه کښي هغې تـه ګرانښت پيدا سو .

کـه پوښتنـه وسـي چـي پـه رښتيا نو د دغو بلقيسو څخه هغه کومه بلقيسه وه چـي پـه تـورات او قـرآن کښـي د هغـې څخـه يادونه سوېده؟

د فرانســـې کـــړ کېښ ليکـونکي (دوساسـي) پـه دې ګـروه دی چـي هغـه ملکـه چـي عـرب هغـه د بلقيسـي پـه نـوم پېژني پاته په (۸۱) مخ کي

✿ فضل الرحمن عمرخېل :-

# عبدالستار سعادت

## د پښتو ځوان او خوږژبی شاعر

ښاغلی عبدالستار «سعادت» د عبدالجبار زوی په ۱۳۵۸ لېږدیز لمریز کال کې د بغلان ولایت د باړي زایو د کلي په یوه دینداره کورنۍ کې زېږېدلی دی

نوموړي لومړنۍ زده کړې د نوي بغلان په ښوونځي کې او د بکلوریا دوره یې د بغلان په عالي لیسه کې بشپړه کړه او په ۱۳۷۹ کال کې له نوموړي لیسې څخه په اعلی درجه فارغ سو تر فراغت وروسته یې د همهغه کال د کانکور په ازموینه کې ګډون وکړ او د کابل پوهنتون د حقوقو او سیاسي علومو پوهنځي ته بریالی سو

سعادت خپل پوهنځی په پوره بریالیتوب سره پای ته ورساوه او د ۱۳۸۳ لېږدیز لمریز کال د لېندۍ په میاشت کې د دغه پوهنځي د اداري او ډیپلوماسۍ له څانګې څخه فارغ سو

نوموړی یو خبرك، هوښیار او د ښواخلاقو لرونکی ځوان دی چې له همدې امله له خپلو همزولو سره په چال چلند کې ځانګړی ځای لري له خپلي خاوري، هېواد او ژبې سره خورا مینه لري

تل هڅه کوي داسې چارې تر سره کړي چې خپل هېواد او خلکو ته یې ګټه ورسېږي چې په همدې موخه یې تېر کال د بغلان په ولایت کې یو کتابتون پرانیست چې د سلګونو ټوکو علمي ادبي، سیاسي، کلتوري، او پوهنیزو کتابونو په لرلو سره په نوموړي ولایت کې لومړنی بډای کتابتون دی چې هره ورځ یې د لسګونو تنو د پوهې او ادب د مینه والو پر مخ ور پرانیستی وي

لکه څرنګه مې چې پورته یادونه وکړه نوموړی د خپلې خاوري او هیواد تر څنګ له خپلې ژبې سره هم ژوره مینه لري چې د بغلان ولایت ادبي بهیر او د بهیر فرهنګي فعالیتونه یې ښه بېلګه ده ځکه د دغې ادبي جرګې په جوړېد او غوړېدو کې نوموړي د پام وړ هڅې کړې د بغلان ولایت خواره واره شاعران، لیکوالان، او روڼ آندي یې هغه د حمزه بابا په قول د پښتو پر یوه تغر سره راټول کړل چې په هرو پنځه لسو ورځو کې ښکلې خوږې مشاعرې جوړوي چې د نوموړي دا ګام د هندوکش په شمالي لمنو کې د پښتني کلتور او پښتو ژبې په غوړېدا کې د ستاینې وړ دی

ځکه په افغانستان کې د وروستیو څه دپاسه دوو لسیزو ناورین خو هسې هم ټولو افغانانو شته له خاورو سره خاوري کړل چې د دغه ناورین ډېره بده څپېړه پښتنو پر مخ وخوړه د هغوی د مادي شتمنیو تر څنګ یې مانیزې شتمنۍ هم د اغیارو د پلان سویو دسیسو ښکار سوې چې زمونږ د هندوکش ها خوا پښتنو تر ډېره بریده دغه ناخوالې وګاللې خو دا چې د هر فرعون لپاره لوی څښتن موسی پیدا کړی نو د هندوکش په شمال کې هم زمونږ ګڼ شمېر لوستو ورونو د خپل پښتني فرهنګ د ساتلو او پاللو لپاره خپلې متې را ونغاړلې چې له نېکه مرغه د ګران او قدرمن سعادت ونډه هم پکښې له پامه نسو غورځولی ځکه هغه پخپل پښتني چوپړ سره د هغې سیمې استوګنو ته دا په ډاګه کړه چې پښتو نه یوازې د دوزخ ژبه نده بلکه دا هغه ژبه ده چې ډېرو پښتني غازیانو خپلو تالي څټو دښمنانو ته د دغې ژبې د یوې لنډۍ په زمزمه کولو سره هغوی ته بې ساري تاوانونه وراړولي دي چې د میوند د ملالې تاریخي او حماسه زېږوونکی ږغ د پښتنون ولس د ویاړونو په ډله کې شمېرل کېږي

ورور سعادت یو هڅاند او غزلبول ځوان دی پدې وروستیو کې «**ستابه په یاد وي او که هېر به دي وي**» د هغه

د پیبلوملغلرو (شعرونو) یوه شعري ټولګه هم له چاپه راوتلې ده نو له وخت نه په ګټه اخستو سره ما هم څو ورځې وړاندې د هغه دغه شعري ټولګه تر ګوتو کړه او چې څومره مې وس رسېده هغه مې ولوستله په رښتیا چې داسې خواږه شعرونه یې ویلي دي چې په لوستلوسره یې د سړي د مینې او عاطفې احساسات راپارېږي.

کله چې ما د نوموړي دغه شعري ټولګه ولوستله نو له خان سره مې هوډ وکړ چې راځه د هغه په شاعرۍ، فرهنګي فعالیتونو، او همدا راز خپل قام او ژبې ته د ګران سعادت په چوپړ باندې څه ولیکم نو مخکې له دې چې په دې هکله خپل قلم وخوځوم نو دا مې وټیټېله چې لومړی باید په دې برخه کې له هغه سره خوښه وکړم او د هغه په ژوند کې د خوږو او ترخو په هکله باید د هغه له خولې څخه واورم نو د کابل پوهنتون په مرکزي شپه غالي کې د نوموړي لنډمهالي استوګنځای ته ورغلم او په دې هکله مې ورسره خبرې وکړې په پای کې هغه راسره هو وکړه چې په دې سره ما لومړی د هغه په ژوند کې د ښو او بدو خاطرو په هکله له نوموړي څخه وپوښتل هغه راته له خندا په ډکه خوله داسې ووېل

یاره عمرخېله نه هم له هر څه سره کار لرې او زیاته یې کړه ،کله چې خاطره وایو څرګنده ده چې ماضي یادوو څینې خلک داسې کلیمې استعمالوي بده خاطره ، ترخه خاطره او

زه په دې خبرو باور نلرم. نه پوهیږم زه ولې بده یا ترخه خاطره نلرم دا به په دې مانا نه وي چې ما په ژوند کې هیڅ ناخوالې نه دي لیدلي زه یو استثنایي انسان نسم کېدلی. ما په ژوند کې ډېر کړاوونه لیدلي دي خو اوس یې تریخوالی نسم احساسولی ښايي دلیل یې دا وي چې زما او د غمونو تر منځ د زمان پرده غوړېدلې وي. او یا دا چې په هغو ترخو کې مې د عمر خوږې شیبې نغښتې دي ځکه خو مې په ما باندې خپله ماضي ډېره ګرانه ده. فکر کوم ټول انسانان به همداسې وي د انسان وجود له دوه څېزونوڅخه جوړ دی چې یو یې روح او بل یې جسم دی چې دا دواړه له یو بل سره ډېره مینه لري او فکر کوم د مرګ د تریخوالي دلیل به هم همدا ټکی وي

انسان له دریو زمانو سره اړیکې لري ماضي، حال او مستقبل چې له دې هري زمانې سره انسان بېل ، بېل حالتونه لري له ماضي سره مینه لري که څه هم ښه تېره سوې نه وي ځکه د عمر تېري شیبې . خوږې شیبې. د لاسه تللي شیبې که له یو ځوان څخه وپوښتو. ماشومتوب به یې پرې ګران وي او که له سپین ږیري څخه وپوښتو هغه یې خپله ځواني یادوي مګر د عمر بېقدري د حال په زمانه کې لیدلای سو ځکه د انسان په لاس کې چې کوم څه وي په دې باور نلري چې له لاسه به یې ورکړي ځکه خو د حال په زمانه کې د عمر شېبې نقدي له انسان سره وي او داسې انسانان ډېر لږ دي چې هغوی په دې زمانه کې په رښتیني او واقعي ډول د عمر تېرېدل حس کړي او په مستقبل کې خو لکه ایمان دوه عنصره اوسي چې یوه وېره ده او بل امید د عمر شېبې هم په احتمال کې دي ځکه خو هر څه یې مشکوک وي

له ورورسعادت څخه مې وپوښتل چې څه شی دې خوښیږي؟

هغه راته په حواب کې ووېل

(خپلې ماضي سره مې زیاته مینه ده او هغه کوم چې له حال سره هم خوږې اړیکې ټینګې کړم)

سعادت راته د دې پوښتنې په ځواب کې چې د کوم شاعر، شعر دې خوښیږي داسې ووېل

(شاعر نسم په ګوته کولای د هر شاعر شعر چې وي مګر دا دوه عنصره پکې وي (تخیل او تفکر) خوښیږي مې

کله مې چې له هغه څخه وپوښتل چې له څه شي دې بد راځي هغه ووېل

(د هغه چا له کرکې څخه مې ډېر بد راځي او زیاته سخته راباندې تیرېږي چې مینې ته یې اړتیا لرم)

نوموړی سره د دې چې یو نازک خیال شاعر دی یو واقعبین شاعر هم دی چې د خپل کتاب په څینو برخو کې یې داسې پر واقعیت ولاړ شعرونه تر سترګو کیږي چې په یو ځل لوستلو یې سړی کولای سي د هغه د شعرونو واقعیت او شعري استعداد معلوم کړي د بېلګې په توګه هغه لیکي

یتیمې هیلې پکښې ګرځي د خپګان کوڅه ده
عشقه کوځې ته چې دي ګورم د افغان کوڅه ده

پورتنی بیت سره له دې چې په ښکاره خو د طنزیه شعر په څېر لیکل سوی اما په واقعیت کې که سړی ورته وګوري نو دا به ورته په ډاګه سي چې نوموړي د خپل ګران هیواد روان حالت په څومره ښه ډول انځور کړی چې لوستونکي ته له ورایه دا جوتېږي چې په افغانستان کې څه تېر سوي، څه تېرېده. او څه تېرېږي.

همدا رنګه هغه پخپلو شعرونو کې د خپل هیواد تاریخ

ته هم نغوته کېږده لکه چي يو ځای کارېږي

راځه چي لاړ سو د چينې غاړې ته
تاريخ تکرار کړو د مغولو هلته

که چيري ګران لوستونکي پورتني بيت ته پام وکړي نو دا به ورته جوته سي چي ګران سعادت د مغولو د پېر ناوړو ته اشاره کړې او د هغوی له ظلمونو څخه يې پرده پورته کړې چي هغه لړۍ لا نه ده پرې سوې او څيني نښې يې لا اوس هم د هيواد په لر او بر کي تر سترګو کېږي خو که سړی د افغانستان د څه دپاسه دوه وروستيو لسيزو کړکېچ ته وګوري نو تل پکښې داسي سوي چي ظلم يو چا کړی او پړه يې پر بل چا اچوي او تر اوسه لا داسي نر نه دی پيدا سوی چي دا ثابته کړي چي ظلم چا کړی او ولي يې پړه پر بل ور اچوي چي ورور سعادت دا حالت ته هم متوجه سوی او هغه يې د شعر په ژبه داسي انځور کړې

راځه چي لاړ سو د چينې غاړې ته
دا ټول ورانې به پر بل چا واړوو

راځه چي لاړ سو د چينې غاړې ته
خلك راندہ دي موږ ليدلای نه سي

درنو لوستونکو!

وګوری چي شاعر څومره د دغه هيواد په حالاتو پوه دی او په څومره خيرکۍ سره له تېرونادودو پرده پورته کوي هغه په ګران هيواد کي د اغيارو د لاسوهنو څخه د حال په ژبه سر ټکوي او له ډېره سوزه د لوی افغانستان بنسټ ايښودونکي ستر ټولواك ابدالي بابا ته داسي ناره کوي

کاشکي لحد کي درانيه په اړخ واوړې يو خل
چي له هيبته دي ډهلي بيا تر اټکه رېږدي

په پورته بيت کي شاعر ابدالي بابا ته وايي چي که چيري ته يوازي په لحد کي پر اړخ هم واوړې نو بيا به دي د اوس مهال دغه لاسوهونکي بلوسګر تر اټکه هم ها خوا اوړي

شاعر دلته په حقيقت کي هم د هغه مهال د افغانستان پولو ته اشاره کړې او هم يې په يو نه يو ډول دغه لاسوهونکي هيوادونه وېرولي دي چي زمونږ په هيواد کي له لاسوهنو لاس واخلي

سعادت صاحب په هيواد کي د زور زياتي په مقابل کي د خپلي مېړاني او مقاومت په يادولو سره د ولس ډاډ او بې زړه توب ته هم ګوته نيسي او وايي

موږ ميړني يو "سعادته" ترېنه سر غوڅوو
ډارن ولس چي پر ظالم کوي نيوکه رېږدي

ښاغلی شاعر سره له دې چي يو قوي، هوډمن شخص دی يو پاك زړی عقيدوي مسلمان هم دی او د هغو زاهدانو په خواب کي چي په پټو سترګو پر يو چا د کفر تور لګوي د خپلي ټينګي عقيدې څخه داسې يادونه کوي

ما په خالق باندې ايمان راوړی
کتاب منمه پيغـــــمبر منمه
ولي په ما د کفر تور لـــــګوې
حساب منم ورځ د محشر منمه

هغه پخپلو شعرونو کي د مېړانې، نارينتوب له خپل هيواد او تاريخ څخه د باخبرۍ تر څنګ له ميني څخه هم زښته زيانه يادونه کړې او نه به وايې چه هغه ټول عمر د ليلا په غم کي اوښکي توی کړي لکه چي د خپلي شعري ټولګي په يوه برخه کي داسي ليکي

لا مې د زړه ماتي هنداري هېره کــــړې نه يې
ماتو ټوټو کي يې ستا ښکلي تصويرونه ښکاري

قدرمنو لوستونکو

وګورئ چي شاعر دلته څومره په مينه کي ډوب سوی خو لا هم د خپلي محبوبې په ديدن نه دی موړ سوی نو ځکه وايي چي لا مي هم د زړه په هنداره کي ستا د حسن او ښايست تصوير ځای لري او نه غواړم چي ستا د ښکلا تصويرونه خپل د زړه له هنداري څخه ليري کړم

څيني وخت سعادت صيب خپل جانان ته په خطاب کي داسي وايي

خپله مي ذهن کي انځور کړه مانه څه له پوښتې!
څنګه به ښکارم بې جانانه جانان څنګه ښکاري؟

په پورتني بيت کي شاعر خپل جانان ته وايي چي له ما څخه پوښتنه مه کوه ته خپله داسي فکر وکړه چي کله ته نه وې نو زه به څنګه ښکارم! په حقيقت کي دلته شاعر په مينه کي د بېلتون او جدايۍ يو سخت حالت انځور کړی نو ځکه خپل جانان ته د هغه د نه شتون په حالت کي د خپل حالت بيان کوي

قدرمنو لوستونکو

لکه څرنګه مي چي پورته په څو څو ځله يادونه کړې چي سعادت صاحب د ښو اخلاقو خاوند دی له هر چا سره ښه سلوك کوي پخپلو کړو وړو کي تل رېښتينی وې چي د نوموړي دغه ځانګړتيا د ده په شعرونو کي هم تر سترګو

کېږي هغه خپل جانان ته د هغه د جفا په بدل کي داسي وايي

ته که هر څومره بې وفا شوې زه دي نه هېروم
که زمانشوې د بل چا شوې زه دي نه هـېروم
زه څو ژوندی يم د جنون دښته به پرې نـږدمه
ته که د بل سړي ليلا شوې زه دي نه هــېروم



وګورئ: شاعر له خپلي معشوقې سره په مينه کي دومره رېښتينی دی چي که هغه له بل چا سره مينه وکړي او د بل چا سي خو بيا هم هغه د ده په زړه کي ځای لري او هغې ته د نوموړي په خواب کي يوازي دومره وايي چي زه دي نه هيروم

ګران سعادت د غزل تر څنګ آزاد شعرونه هم ويلي دي چي سړی د هغو په وزن هم پوره حساب کولای سي هغه په آزادو شعرونو کي هم د خپلو غزلونو په څېر د ميني، بېلتون . وفا او جفا کيسې کړي چي لوستونکي ته د يو ډول پيغام په لېږدولو سره په شعر باندې د هغـه د پوهاوي سبب ګرځي ځکه د هغه د شعر ژبه ډېره ساده، نرمه خو له پيغامونو ډکه ده نوموړی د يوه آزاد شعر په يوه برخه کي له ده سره د خپل جانان له بيوفايي څخه داسي يادونه کوي او ليکي



ستا به په ياد وي او که هېر به دي وي
آ د کوچني اختر ماښام يادوم
چي دي ټوپک راواخيست
مرمی دې تېره کړله
سترګي دي وتړلې
مخ دي هم واړوه ترې
نازکي ګوتې دي ماشې ته وروړې
آ توربخن ماښام دي ولړه په سرو ګوليو
بيا دي ساړه اسويلي وايستل پښېمانه شولې
ودي ويل
دا مې څه وکړل؟



په پورتني شعر کي شاعر داسي يو حالت انځورکړی چي د کوچني اختر ماښام و جانان يې ټوپک راواخيست له مرميو يې ډك کړ خپلي سترګي يې وتړلې سره له دې چي دی ډېر بې زړه و او له ټوپک څخه يې مخ واړاوه خو بيا يې هم پر ده باندي د ډزو کولو په نيت خپلي نازکې ګوتې د ټوپك ماشې ته وروړې او د ماښام هغه وخت چي ټول ساکښ خپلو استوګنځايونو ته ځي د اسمان کنارې يې د ده د وينو په رنګ، رنګيني کړې خو په پای کي د ساړه اسويلي په ويستلو سره يې پخپل عمل پښېماني څرګنده کړه درنو لوستونکو

وګورئ شاعر په پورتني شعر کي داسي يو حالت انځور کړی چي ته به وايې چي کټ مټ دا کانه به په ده باندي رښتيا سوې وي خو په حقيقت کي دا چاره د نوموړي پر شعري استعداد باندي دلالت کوي

په مينه کي خو هسي هم ډېري لوړې او ژورې وي کله خوندونه وي او کله خو بيا د بېلتون له لاسه د عاشقانو سترګي د اوښکو په تويولو سره سرې وي، کله جفاوي او کله وفا، کله مرورتيا وي او کله پخلاينه او کله هم بيا ګيلې چي شاعر هم خپل مرور محبوب راپخلا کوي او هغه ته په خطاب کي ليکي

ټول وجود باندې مي غواړې بيرته راشه
مــــــروره رانه لاړې بيرته راشـــه
مخامخ به دي غرور مات شــوی نه وي
پسي شــــا راپسي ژاړې بيرته راشــه



په دغه بيت کي شاعر خپل محبوب ته وايي چي زه خو پر تا ګران يم غواړې مي خو هسي پښتني غرور اجازه نه درکوي او چي کله درنه فنا سم بيا نو دي پر مخ مرې مرې اوښکي را رواني وي او راپسي ژاړې خو له دغو ټولو به سره تېر سو بيرته راسه

په پای کي باید ولیکم چي عبدالستار "سعادت" د پښتو ژبي د هغو ګوتو په شمار شاعرانو له ډلي څخه يو دی چي د وخت او حالاتو د نه سمون سره سره یې د «ستا به یاد وي او که هیر به دي وي» په نوم شعري ټولګه د پښتو ژبي او پښتني فرهنګ مينه والو ته د خدمت په موخه چاپ او د درنو لوستونکو په واك کي يې ورکړه هيله ده درانه لوستونکي د دغه قدرمن شاعر د شعري احساساتو څخه خوند واخلي تر څو په راتلونکي کي د هغه د لاتشويق سبب سي په پای کي زه قدرمن سعادت ته د هغه د کلتوري خدمتونو د لاګرنديتوب او پدې لاره کي نوموړي ته د برياليتوبونو هيله کوم او وايم چي خدای دي د پښتنو وګړو د ډېرښت په هکله د کرور بابا دوعا قبوله اومنظوره کړي

آمين يارب العلمين



# زموږ د ادب کليواله ټولنه

احسان الله درمل /کندهار پوهنتون

کلي يو محدوده ساحه ده، چي يوه ټولنه پکښي ژوند کوي، که څه هم ښايي د دې ټولني د اوسېدونکو تر منځ څه ناڅه جزوي توپيرونه هم موجود وي، خو په لوی سر کي ټوله ټولنه د يوه مشترک کلتور او فرهنګ په دايره کي اوسېږي. پر خدايي پولو او محدوديتونو سربېره کليوال د يو بل قانون او عهد په څنځير هم تړلي وي، چي دا څنځير د کلي مشرانو د خبرو او کليوال منطق له مخي په جرګه کي جوړ کړی وي.

په کلي کي مختلفي طبقې ژوند کوي. ماشومان، ځوانان، مشران، د مکتب معلم، د جوماټ ملا، ښځي، د کلي ملک . . .

په کليواله ټولنه کي هر فرد ځانته مقام لري او په نستوالي کي يې تشه محسوسوو. د بېلګي په توګه که مشران ونه لرو، د کلي د ښو او بدو چارو تدبير ته به حيران يو. که ملا او معلم ونه لرو، د نوي نسل تربيه مو خرابېږي او د علم له فيضه محرومېږو او همداسي نور در واخله. څومره چي د يوه کلي مشران او پوهان نېک خلک وي هماغومره به د کلي د ستونزو هوارېده راته اسان وي. او هر څومره چي يو کلی ښه ملا او معلم ولري هماغومره به يې د نوي نسل تعليمي سويه لوړه وي.

ما ته کله کله ادب هم د يوه کلي په څېر ښکاره سي، چي اوسېدونکي يې مختلف منظوم او منثور تخليقات او تحقيقات دي. د مشرانو او کلاسيک ادب تخليقات او تحقيقات د دې کلي د مشرانو حيثيت لري چي په ډېرو برخو کي اړ يو چي مشوره او رڼا تري واخلو. ځوانان او ماشومان يې معاصر تخليقات او تحقيقات وبولئ او ملا او معلم يې سالم نقدونه او انتقادونه.

که غواړو چي راتلونکې مو روښانه وي، اړ يو چي خپل نوی نسل (ځوانان او ماشومان) داسي وروزو چي هم اسلامي او ديني تربيه ولري او هم د معاصرو علومو په اصطلاح کمپيوټري تربيه. دا کار هله کېدای سي چي د کلي ملا او معلم مو سالم فکر او نېک هدف ولري. او دې هدف ته د رسېدو له پاره بايد خپل ماشومان او ځوانان (معاصر تخليقات او تحقيقات) د نقد ملا او معلم ته واستوو. کله کله خير دی که ملا او معلم پرې يو نيم ګذار هم کوي، خو د استاد ګذار به هم بې ګټي نه وي. که يو کلی ملا او معلم ونه لري، ښکاره خبره ده چي ماشومان او ځوانان به يې په بې لاريو اخته کېږي.

څرنګه چي افغاني ټولنه هم د مختلفو تحولاتو او ځلنجونو سره مخ ده نو موږ اړ يو چي نويو تحولاتو سره ځانونه عيار کړو. دا خبره په ادب کي هم ده. که غواړو چي ادب مو د راتلونکي له لور ډاډمن ګامونه واخلي او د نړۍ والتوب (Globlization) کرې ته داخل سي، نو يوازينۍ لاره يې دا ده چي د خپلو ادبي ماشومانو او ځوانانو تربيې ته پام وکړو. د نقد ملا او معلم ته يې ولېږو، او په تدريج سره يې تر پوهنتونه ورسوو. که داسي مو وکړل نو ليري نه ده چي زموږ د ادب کليواله ټولنه هم د تخليق او تحقيق داسي سرونه راپورته سي چي نړۍ وال به يې هم ووينې.

جمیله همت :-

# د کور پاکولو چاري

ایا ستاسي کور هر گړی گډوډ کېږي؟ او چي تاسي يې پرله پسې پاکوئ زړه مو تنگېږي؟ او داسي هم کېږي چي ځيني شيان بيا هم گډوډ پاته وي؟ که چيري داسي وي نو د غم غوسې يا د کوچنيانو د وهلو ټکولو پر ځای دغه څو اصوله په کار واچوئ. څو هم ستاسي کور پاک وايسي او هم ستاسي کوچنيان خوشحاله واوسي:

١. د کوچنيانو د لوبو لپاه يو ځانگړی ځای وټاکئ او هغو ته دا ور وښياست چي د خپلو لوبو شيان په هغه ځای کي واوډي، هلته آزادانه لوبي وکړي او خپل شيان په بل ځای کي ونه غورځوي.

٢. بله ضروري خبره دا ده چي تاسي ټوله ورځ په کوچنيانو مه پسې کېږئ او پرې يې ږدئ چي لوبي وکړي. کله چي هغوی د لوبو شيان اوډي او تاسي يې پرله پسې ځني ټولوئ، نو هغوی داسي انگېري چي مور مو لوبو ته نه پرېږدي او په دې توگه تاسي هم ستړي کېږئ.

٣. د کوچنيانو لپاره په ورځ کي يو ټاکلی وخت وټاکئ څو هغوی د کور تر پاکولو وروسته په هغه ټاکلي وخت او ټاکلي ځای کي لوبي وکړي.

٤. يوه غټه الماری يا جال د لوبو د شيانو لپاره وټاکئ. دا کار تاسي هوسا کوي. تاسي کولای سئ چي ټول شيان په دغه الماری يا جال کي واچوئ او خونه پاکه کړئ د کوچنيو شيانو د ټولولو لپاره هم د کوچنيو ډبو يا کارتنونو څخه کار واخلئ.

٥. د کوچنيانو په خونه کي بايد داسي الماری کښېښول سي چي کوچنيان يې په اساني سره پرانيزي او جعبې يې په اساني سره خلاصي کړي. دلته



باید تاسي کوچنیانو ته دنده وسپارئ چي خپل د لوبو سامان په خپله الماری یا جعبه کي واچوي او د هغوی لپاره په دې هکله یو انعام هم وټاکئ .

۶ . کور پاکول یو ډول لوبه جوړه کړئ . داد کوچنیانو کار ته د هڅولو تر ټولو ښه طریقه ده په دې توگه به هغوی د کور په پاکولو کي ستاسي سره په مرسته کولو سره خوشحاله وي او ورسره ورسره به د کور پاکول هم زده کړي . هغوی ته یو کوچني برس یا جارو ورکړئ او کار ته یې وهڅوئ .

۷ . د کور د نظم او دسپلین لپاره باید کورني قوانین جوړ کړئ، لکه دا چي ډوډۍ باید پر سترخان باندي وخوړل سي . کوچني باید غاب، کاچغه یا کاسه د خوب خوني ته یا د لوبو ځای ته یو نه سي . د ډوډۍ خوړلو دمخه او وروسته د لاسونو پر ټولل حتمي دي . دغه راز کله چي بوټونه کاږي پر خپل ځای دې ایږدي .

۸ . کوچنیانو ته کار ور وو ښئ . هر کوچني چي ښه کار کړی وي هغه ته انعام ور کړئ او تشویق یې کړئ .

۹ . په یاد ولرئ چي د کوچنیانو سره د پاکۍ او د ناپاکو شیانو د ناوړو اغېزو په هکله خبري وکړئ او دوی په دې پوه کړئ چي که څوک لاسونه پرې نه ولي او خواړه وخوري



څه په کېږي؟ یا غاښونه پاک نه کړي یا خپل کالي او نظافت ښه ونه ساتي یا خپله خونه یا ځای ښه پاک ونه ساتي د څه ډول ناروغیو سره مخامخ کېږي .

۱۰ . کوچنیانو ته بېله دلیله غوڅ حکم مه کوئ . ځکه دغسي حکم کوچنیان د هغه په خلاف کار کولو ته هڅوي . په دې ډول د کوچنیانو لارښوونه په پام کي ونیسئ او په پور ته ډول کړنه وکړئ . البته تاسي به تر څو میاشتو زیار وروسته وویني چي ستاسي کوچنیان به په دې ډول تربیه سوي وي او زده سوي به یې وي چي خپله خونه پخپله پاکه کړي .



## بلقیسه څوک وه؟

د سبا د شاه مېرمني بلقیسي پر ته بله بلقیسه ده چي دې بلقیسي د مآرت د ښار واکمني د څو کلونو له پاره پر غاړه لرله او د سلېمان ﷺ د مړیني څو سوه کاله وروسته یې ژوند کاوه .

د فرانسې یو بل کړ کېښ لیکونکی (فرنل) بیا په دې گروه دی چي بلقیسه د شاه مېرمني نوم نه دی بلکي لرغونو عربو د رب په توگه رب پالنه کوله او د بلقیسي عشتروت او آتور عربي نومونه همهغه د زهرې او ونوس نومونه دي چي لرغونو مصریانو، بابلیانو، فنقیانو، یونانیانو او نورو زیاترو د هغه لمانځنه کوله .



## مینه

* مینه ستر گي ړندوي او غوږونه کڼوي .
* څوربدل د میني لومړني خواږه دي .
* مینه تر هري رښتیا رښتینې ده .
* نړۍ له خپل مین نه تښتي .
* په یوه مینه کي په زرگونو بدمرغۍ سته .
* زوړ چي مین سي بیر ته زلمی سي .
* د دوو مینو پر بیلتانه تیږي هم ژاړي .

# د جنت موندل

**ډېوه همت**

یوه ورځ زما په ذهن کي راوګرځېدل چي جنت به چیري او ښنګه ځای به وي . نو هغه ووچي په دې موخه رهي سوم څو جنت پیدا کړم . تلم تلم چي یو وخت یو ځای ته ورسېدلم . په دې ځای کي د خدای ﷻ ټول نعمتونه موجود وه . شاوخوا تور غرونه وه ، شنې اوبه بهېدلې او په خپلو څپو او باداسکو یې ساز کاوه ، مځکه ټوله په شنه چمن فرش وه ، ګلانو په خپل منځ کي مسکا کول ، جګې جګې وني ولاړي وې او په خپلو پاڼو یې نغمې ږغولې ، بلبلانو په چمن کي په خپلو خوږ و آوازو سندرې ویلې ، شبنم د ګلانو پر مخ داسي ښکارېدی چي تا به ویل سپیني مرغلري بر ښني . هري خوا ته تعطر او تازه ګي وه .

ما چي دې ځای ته وکتل ډېره حیرانه او خوشحاله سوم او دا فکر مي وکړ چي دا به جنت وي . لومړی زه ګلانو ته ور نژدې سوم . ګلانو زما څخه پوښتنه وکړه :

"ته څوک یې او څه شي غواړې؟"

ما په بې صبري سره ورته وویل :

"زه د جنت په موندلو پسي راغلې یم" .

نو ګلانو راته وویل :

"بیر ته کور ته ولاړه سه !" .

بیا زه ونو ته ور نژدې سوم هغو هم د خپلو پاڼو په پوښهارو راته وویل :

"بیر ته کور ته ولاړه سه !" .

اوبو د خپلو څپو په موجو کي راته وویل :

"بیر ته کور ته ولاړه سه !" .

چمن تر پښو لاندي راته وویل :

"بیر ته کور ته ولاړه سه !" .

شمال چي په راڅخه ونښت هغه هم همدغه ویل چي :

"بیر ته کور ته ولاړه سه !" .

کله چي ما د دې ټولو کائناتو خبري واورېدلې نو ډېره خپه سوم او نهیلې کور ته راغلم . زه ډېره غمجنه او خوابدې وم . ځکه چي په خپل مقصد کي بریالۍ نه سوم . زه په همدغه فکر کي وم چي ناڅاپه مي یو خوږ او په زړه پوري ږغ تر غوږ سو چي ویل یې :

"زویه څه درسوي دي ، ولي خپه یې؟"

کله چي مي سر راپورته کی ، نو جنت مي خپل تر ښنګ وموند هغه زما مور وه ، او د دې ږغ د خدای د ټولو پیدا کړو کائناتو څخه جلا و . هغه ورځ پوه سوم چي جنت یوازې او یوازې د مور تر تلو لاندي دی .



## ښکلا

* ښکلا ښاغلې مېلمنه ده ، چي هر ځای ته ولاړه سي ، په درناوي یې هر کلی کېږي .
* ښکلا له ښکاره کېدو سره اړه لري .
* خوږ خبکې د موږک خوراک سي .

# د روتشیلد ویولون

۞ لیکوال :- انتون چـــخوف
۞ ژباړن :- عبدالحمید ترابي

د یوه کلي غوندي وړوکی ښار و چي نژدې ټول اوسېدونکي یې سپین ږیري او تر وخت تېر خلك وو، خو دومره لږ به مړه کېدل چي ښېخي د خواشینی خبره وه. د ښار د زندان او روغتون به هم کله ـ کله تابوت ته اړتیا پیدا کېده. لنډه دا چي د کسب او کار هېڅ مزه نه وه او ښېخي په تپه ولاړ و. که یاکُف ایوانف د دې واړه ښار پر ځای په لوی ښار کي کار کولای نو له شکه پرته چي لکپتي کېدی به. خپل ځاني کور به یې لرلای او یاکُف ماتوویچ به بلل کېدای. خو په هاغه واړه ښار کي یوازي په یاکُف مشهور و او په کلي کوڅه کي یې هم (گوره له څه وجې) د (برنزا) لقب



وړی و یاکُف د یوه ساده بزګر غوندي د غریبۍ ژوند درلود. زاړه وړوکي کور یې یوازي یوه کوټه درلوده، چي خپله ده او مارفا لـه بخاری، دوه کسیز کټ، د ترکانۍ له مېز او نور ټول هست و نیست سره پکښي ژوند کاوه

ده خورا کلك تابوتونه جوړول د سارايي او کلیوالي خلکو تابوتونه به یې د خپل بدن او خپلي وني په اندازه نیول او په دې اړه هیڅکله هم تېر نه وتئ، ځکه سره له دې چي د عمر اویا کلونه یې اوښتل په درست ښار کي ـ تر دې چي د ښار په زندان کي هم ـ تري لوړوني او هډور سړی نه موندل کېدئ خو د ښځو او محترمو خلکو لپاره به یې تابوتونه د هغوی د خپلو اندازو له مخي جوړول او د هغوی د اندازو د نیولو لپاره به یې هم یو اوسپنیز تیم ګزی کاراوه د ماشوم تابوت به یې په نه زړه مانه. دا ډول تابوت به یې له کومي اندازې پرته او د اړتیا له مخي جوړاوه او د هغه د بیې د معلومولو پر مهال به یې تل ویل

(ولا چي رښتیا ووایم ګردسره نه غواړم چي پـه داسې ورو ـ وړو کـارونو ځان بوخت کړم)

هغه د تابوت جوړوني پر کسب برسېره د ویولون ږغولو له لاري هم څه اندازه لاسته راوړنه درلوده د واړه ښار په ودونو کي به معمولاً یوه ډلـه یهودي سازنده رابلل کېدل. د دې ډلي مشر، چي یو مسګر و او (مویيسـي ایلیچ شـاخکس) نومېدئ تل د ډلي نیمايي لاسته راوړنه خپل جېب ته اچوله دا چي یـاکُف یو ښه ماهر ویولون ږغوونکی و او په ځانګړې توګه روسي سندري او بدلي یې ډېري ښه ویلای سوای نو شاخکس به کله ـ کله خپلي ډلي ته ورباله او په هر ځل به یې د مېلمنو له انعامونو پرته پینځوس کوپکه مزد ورکاوه برنزا چي به کله په ناستو او ودونو کي د ویولون ږغولو لپاره کښېناسته نو تر هر څه لومړی به یې څېره په بنفش رنګ اوښتله او په خولو کي به ډوبېدئ. ځکه د تودوخي احساس به یې کاوه او د هوږي د بد بوی له امله به یې ساه بنده ـ بنده کېده. ویولون به یې چیغي وهلې. ښي غوږ ته به یې کنترباس[1] خُر-خُر کاوه او کیڼ غوږ ته به یې شپېلۍ ږغېدلـه شپېلۍ ږغوونکی یو ډنګر نری او د خړو ویښتانو لرونکی یهودی و چي څېره یې ټوله له نازکو سرو او شنو رګونو ډکه وه او زموږ د زمانې د مشهوري شتمنې کورنۍ یعني روتشیلد نوم یې هم په ځان پورې ترلی و دې لعنتي یهودي بیا هغه تر ټولو خوشحاله ترانې هم پـه غمګینو نغمو کي ویلې د یاکُف له کوم خاص دلیله پرته پـه زړه کي ورو ـ ورو له یهودانو او په ځانګړي ډول له روتشیلد څخه کرکه او نفرت پیدا کېدئ. پلمې به یې ورته لټولې او څومره چي به یې وس و هغومره به یې بد رد ورته ویل، ښکنځل به یې ورته کول او تر دې چي یو وخت خو ښېخي نژدې و خوار یهودي ته وهل ټکول ورکړي پـه هغه ورځ روتشیلد خوربدلی و او له غوسې ډك کاته یې په یـاکُف کي ګنډلي او ویلي یې وو

(که مي ستا د ذوق او هنر درناوی نه کولای نو اوس به مي لـه دې کړکۍ څخه لاندي ارتاو کړی وای)

او وروسته یې ژړلي وو نو همدا وجه وه چي برنزا به کله ـ کله او یوازي هغه مهال کنسرټ ته وربلل کېدئ چي یهودي شپېلۍ ږغوونکی به نه و.

یاکُف به د هغو درنو زیانونو له امله، چي له ناچارۍ څخه یې باید زغملي وای تل پـه غوسه، نارام او بد چلند و، مثلاً که غوارې یا نه غوارې په کال کي باید نژدې دوه سوه ورځي همداسي لاس تر زنې بېکاره کښېني او هیڅ شي ته لاس ور نه وړي ځکه د یکشنبو او اخترونو په ورځو کي باید کار ونه سي ـ ګناه لري ـ دوشنبې ورځي خو هم داسي نفستنګي او غمېدونکي ورځي دي چي د سړي هیڅ کار ته پکښي زړه نه غواړي. نو چي رښتیا سي دا یو ډېر لوی زیان دی او کله ـ کله هم داسي پېښه سي چي څوك خپل شوق یا واده ته سازنده هیڅ خبر نه کړي او یا شاخکس د شپېلۍ ږغوونکي لـه نه شتون سره ـ سره برنزا پروګرام ته ور ونه غواړي دا بیا یو بل لوی زیان د ښار والي پوره دوه کاله پر له پسې ناروغ و او ورځ تر بلي پېزی کېدئ. یاکُف پـه دې ټوله موده کي په خورا بېصبرۍ د هغه د مړینې انتظار کاوه، خو والي په دې نیت، چي درملنه بـه یې وسي د هیواد مرکز ته لاړ او له هغه ځایه برابر د هاغه بلي نړۍ مېلمه سو دا بیا د لسو روبلو یو بل زیان و؛ ځکه د والي لپاره یې هرو مرو قیمتي تابوت له زرینو پوښونو سره جوړاوه د دا ډول زیانونو غمونو به ډېر سخت ځوراوه ـپه تېره بیا په شپه کي ـ په داسي حالاتو کي به

[1] ویولون غوندي د موسیقۍ یوه آله ده خو تر ویولون ډېره لويه ده ژباړن

یې بیا ویولون له ځان سره خپل بستر ته وړئ او په داسي حال کي چي په ډېرو ځورونکو فکرونو کي به غرق و ترك و ګوتي به یې د هغه پر تارونو خوځولي او له هغه څخه د راوتونکي رِغ له امله به یې. چي د شپې په تیاره کي به سره پېچل کېدئ یو څه د ارامۍ احساس کاوه

یو کال وړاندي د کال پینځمه میاشت وه چي مارفا ناڅاپه ناروغه سوه. خواري سپین سري به په خورا زحمت تنفس کاوه او تر معمول به یې ډېري اوبه څښلي. ځنګېدلي ـ ځنګېدلي به روانه وه او پر سترګو به یې توره شپه راتله. خو له دې سره ـ سره یې په دا سبا د کوټې بخارۍ روښانه کړه او تر دې چي اوبه یې لا هم راوچلولې. خو لمر لوېدو مهال ته له تګه ولوېده او تر بړستنو لاندي سوه. یاکُف په هغه ټوله ورځ په ویولون رِغولو بوخت و خو د هوا په تیاره کېدو یې خپله د زیانونو د یاداښت کتابچه ورواخیسته او د نفستنګۍ او خواشینۍ له مخي د خپلو کلنیو زیانونو په جمع کولو بوخت سو. د جمع حاصل یې تر (زر) روبله زیات راووت. د دومره ستر زیان په لیدو داسي په غوسه او سره وخوټېدئ. چي د حساب آله یې په ځمکه وویشته او پښه یې په ډېر زور او غضب د کوټې په منځ کي له ځمکې سره وجنګوله. وروسته یې د حساب آله بېرته راواخیسته او ګړی وروسته له خواشینۍ په ډك زړه او اسوېلیو د خپلو زیانونو په حساب و کتاب بوخت سو. خولې پر بهېدلي او څېره یې تکه سره اوښتې وه. له ځان سره یې فکر وکړ چي که یې دا (یو زر) روبله بانك ته ورکړي وای نو اوس خو به یې لږ تر لږه په هر کال کي (۴۰) روبله وربانديې ګټلای. البته دا څلوېښت روبله یې هم پر کلنیو زیانونو پسي ورزیات کړل. لنډه دا چي هر لوري ته به یې مخ اړاوه له زیانه پرته به یې څه لاس ته نه ورتلل! په همدې وخت کي مارفا وررِغ کړل

(یاکُفه. زه خو مرمه!).

یاکُف یې خوا ته ورغئ. د هغې څېره د تودې تبې له امله انار غوندې تکه سره وه او د پخوا پر خلاف خوښه او نوراني ښکارېده. برنزا له دې امله. چي هغه به یې تل وېرېدلې. رنګ الوتې او خواشینې لیدله لاس و پښې ورك کړل. هغه د ځکندن په حال کي ورته وایسېدله او له دې وجي یې د خوښۍ احساس کاوه چي تور به له دې کوډلي. تابوتونو او خپله د یاکُف له شره آزاده سي. بوډۍ ښځې سترګي د کوټې په چت کي ګنډلي وې. شونډې یې خوځولې او ښکمرغۍ وربانديې داسي خپل وزر غوړولی و لکه دا مرګ ـ دا مسیحا ـ چي یې په خپلو سترګو لیده او ښه راغلی یې ورته وایه

سپېدې وچاودلې او د آسمان لمن د کوټې د کړکۍ تر شا ورو ـ ورو اور غوندې تکه سره سوه. یاکُف ته په داسي حال کي چي خپلې بوډۍ میرمني ته یې کتل ګوره نه څه وجي ورياد سول چي تر دې ـ مه یې هغې ته حتا یو ځل هم ناز نه دی ورکړی. زړه یې نه دی وربانديې سوځلی او تر اوسه یې مازې یو ټېکری هم پر سر نه دی وراچولی او له ودونو څخه یې هیڅکله ورته خوږې ډوډۍ نه دي راوړي او د دې ټولو پر ځای یې تل د خپلو وررسېدلو (زیانونو) له امله رټلې ده. ښکنځل یې ورته کړي دي او په وارو ـ وارو وربانديې ببر سوی دی. که څه هم هیڅکله یې نه وه وهلې خو یوازې یې ګواښونه هم کافي وو چي سپین سرې یې له وېرې او وحشته په رېږدېدو کړې وای. هو. هغه به خپله سپین سرې میرمنه سپما ته اړایستله. حتا د چایو له څښلو به یې هم منع کوله او مارفا خوارې به تل د چایو پر ځای ایشېدلي اوبه څښلې. او اوس چي یې د مارفا خوشحاله او عجیبه څېره لیدله او په لامل یې پوهېدئ نو په زړه کي یې د نارامۍ احساس کاوه.

د لمر په راختو یې سمدستي د ګاونډي بګۍ د څو ساعتونو لپاره واخیسته او مارفا یې روغتون ته پکښي بوتله. په هغه ورځ ناروغان یو څه لږ وو چي له همدې امله یې تر درې ساعته ډېر انتظار ونه کړ. له دې وجي چي ډاکټر خپله ناروغ او بستري و او پر ځای یې مرستیال

ماکسیم نیکلاییچ ناروغان کتل ډېر سخت خوښ سو. ځکه په ښار کې ویل کېدل چې که څه هم د ډاکټر مرستیال شرابخور او څُشک دی خو بیا هم په درملنه کې خپله تر ډاکټر ښه دی. کتنځې ته په ورننوتو یې ماکسیم نیکلاییچ ته وویل:

(سلام د زړه سره! ... دا چې د هر مازیګ کار لپاره مو مزاحم کېږم شرمنده یم خو دا ... سیاسره مي ... وبخښئ هغه د نن ورځې د خلکو خبره د ژوند ملګرې مي ناروغه سوې ده ....)

د ډاکټر مرستیال د تندي ګونځې سره ټولې کړې او په داسې حال کې چې له غوږ سره نژدې یې د سر د بغل پر ورېښتانو لاس تېراوه د مارفا په معاینه کولو بوخت سو. ډنګره، وچه کلکه او پر ملا کږوپه سپین سرې پر کټ ناسته وه؛ که چا د بغل له لوري ورته کتلې وای نو په پرانیستې خوله او تېره پزه د یوې چرګې غونډې ښکارېده. د ډاکټر مرستیال تر شونډو لاندې وویل:

(ښه ... یوه سوم ...)

وروسته یې ژوره ساه واخیسته او ویې ویل:

(زکام ده. یا هم ښایي ملاریا سوې وي. په دې ورځو کې محرقه ډېرخې ډېره سوې ده ... سرې څه ورسره کولای سي؛ دا خو لا ښه ده سپین سرې ده، ښه ډېر ژوند به یې کړی وي ... څو کلنه ده؟)

(راتلونکی کال یې اویایم دی)

ـ (نو چې داسې ده ښه ډېر ژوند یې کړی دی ... تر دې نو اضافه څه کوي ...)

یاکُف د احترام او ادب له مخې ومو سکل او ویې ویل:

ـ (هو، تاسو پوهېږئ ... ښه مو وویل ... ډېره مننه ... خو ستاسو په اجازه باید ووایم چې یوه خزنده لا هم غواړي چې ژوندۍ واوسي)

د ډاکټر مرستیال په یوه داسې لهجه لکه د سپین سرې مرګ و ژوند چې یوازې په ده پورې تړلی وي وویل:

ـ (ښایي ... ښه ګرانه، یخ دسمال یې پر سر ورکښېږده او دغه ګولۍ په ورځ کې دوه ځله ورکړه، نور مو نو په مخه ښه، ورځ مو په خیر!)

یاکُف د ډاکټر د مرستیال له څېرې پوه سو چې د مارفا حالت ډېر نازک دی او هیڅ ډول ګولۍ به یې ونه سي ژغورلای. هغه پوه سو چې سپین سرې مېرمن به یې ډېر ژر ـ نن یا سبا ـ مړه سي. نو یې د ډاکټر مرستیال ورو تر څنګل ونیوه او تر سترګې وهلو وروسته یې ورو ترې وپوښتل:

ـ (ماکسیم نیکلاییچه، ښه به دا وي چې یو څه وینه ترې وباسئ ...)

ـ وخت نه لرم، وروره وخت نه لرم. سپین سرې دې تر لاس نیسه څه بالا پر خپله لاړ ...)

یاکُف په زاریو او ننواتو وویل:

ـ (ډاکټر صیب پر موږ رحم وکړئ، خپله تر ما ښه پوهېږئ چې [illegible] به ځای با [illegible] پر [illegible] وای نو بیا کېدای سوای چې په قطرو یا ګولیو [illegible] [illegible] اوس یخنی وهلې ده، نو څوک چې یخنی وهلې وي باید تر [illegible] ...

وینه ترې وایستل سي!)

خو د ډاکټر مرستیال بل ناروغ ته ورږغ کړل، او یوه کلیواله ښځه له خپل واړه ماشوم سره کتنځې ته ورننوته. ماکسیم نیکلاییچ څېره تُروه کړه او یاکُف ته یې وویل:

ـ (ځه نو بالا! ... بېځایه رشادت مه کوه!)

ـ (خو ډاکټر صیب مازې یو ځاځکی وینه ترې واخلئ؛ تر ابده به درته دعاوې کوم!)

د ډاکټر مرستیال دا ځل له کنټروله ووت او چیغه یې کړه:

ـ (که د نامې زوی یې نو بله خبره وکړه! ... سپین سترګې! ....)

یاکُف هم له کنټروله ووت، خو څه یې ونه ویل. مارفا یې تر مټ ونیوله او بهر ته ووت. مازې یې په بګۍ کې د سپرېدو پر مهال له غوسې او ملنډو ډک کاته په روغتون کې وګندل او ویې ویل:

ـ (دلته خو یې د ډاکټرانو پر ځای ډمان راوستلي دي، که دې ناروغ یو شتمن سړی وای نو هرو مرو به دې وینه ترې ایستلای خو اوس دې د یوه خوار غریب یو ځاځکي وینه هم وا نه خیستله. ظالمه. بې انصافه!)

خپل کلیوالي کور ته په رارسېدو مارفا لاس پر بخارۍ ونیوئ او د لسو دقیقو لپاره همداسې پر پښو ودرېده. فکر یې کاوه که پرېوزي نو یاکُف به بیا د خپلو زیانونو په اړه ورسره خبرې ورته سر سي او له دې امله

به بد رد ورته ووايي چي مارفا ولي تل ويده وي او هيڅ شي ته لاس نه وروړي. خو ياکُف ته په داسي حال کي، چي خپل له غمه ډك نفستنگي کاته يې په مېرمني کې گنډلي وو ورياد سول چي سبا خو د (سپېڅلي ژان) او بله ورځ د (معجزه کوونکي نيکلاى) اختر دى. يکشنبه او ورپسې ورځ دوشنبه خو نو بيا بد شگوني او ټنبلي ورځي دي: نو چې داسې ده بايد پوره څلور ورځې لاس تر زني کښېني او هيڅ شي ته لاس ورنه وړي. حال دا چي مارفا په نن او سبا کي پر مړه کېدو ده؛ نو بايد همدا نن لاس په کار سي او تابوت جوړ کړي. او سپنيز نيم گزی يې ورواخيست. د سپين سري مېرمني پر لوري لاړ او د هغې د وني اندازه يې واخيسته. وروسته مارفا ستوني ستخ په ځاى کي اوږده وغځېده او ياکُف پر ځيگر باندي تر صليب انځورولو وروسته په تابوت جوړولو بوخت سو.

همدا چي کار يې تمام کړ سمدستي يې عينکي پر سترگو کړې او په خپله کتابچه کي يې وليکل (د مارفا ايوانونا لپاره تابوت. دوه روبله او څلوېښت کوپکه) او اسوېلی يې وايست. د هغه زړې مېرمني مارفا په دې ټول وخت کي سترگې پټې کړي او اوږده غځېدلې وه. خو تر لمر لوېدو وروسته چي هوا تياره سوه خپل خاوند ته يې ورږغ کړل او په داسي حال کي چي له خوښيو ډك کاته يې پکښې گنډلي وو ويې پوښتل:

ـ (ياکُفه ستا ياد دي چي پنځوس کاله مخکي خداى يوه ښايسته لور راکړې وه... چي طلايي ورېښتان يې وو؛ چي زه او ته به هره ورځ د سيند پر غاړه له ولي سره کښېناستو... او سندري به مو ويلې؟)

وروسته يې ترخه موسکا وکړه او ويې ويل:

ـ (چي وروسته بيا زموږ هغه لور مړه سوه!)

ياکُف چي هر څومره پر يادښت زور واچاوه تر څو خپله لور يا وله په ياد راوړي خو څه يې لاس ته ورنغلل، نو يې وويل:

ـ (زما خو څه نه يادېږي... فکر کوم خوب به دي ليدلی وي.)

وروسته کشيش راغی او مذهبي مراسم يې پر ځاى کړل. مارفا تر سپېده داغه تر شونډو لاندي نامفهومه کليمات زمزمه کول او آخر سهار وختي مړه سوه.

د گاونډيانو سپين سرو غسل ورکړ او په کفن کي تر پېچلو وروسته يې په تابوت کي کښېښووله. ياکُف د دې لپاره چي د کشيش له پيسو يې ځان ژغورلی وي خپله د تابوت سر ته ودرېد او مذهبي مراسم يې پر ځاى کړل. د قبر او قبر کيندلو پيسي يې هم ترې وانه خيستې ځکه د هديرې ساتونکی د ياکُف (ديني پلار) و. څلورو کليوالي خلکو تابوت ـ د احترام له مخي، نه د پيسو تر لاسه کولو له لپاره ـ پر اوږو کړ او د هديرې پر خوا روان سول. څو سپين سري، دوه خواخوږي نارينه او څو سوالگر هم په تابوت پسې وو. لارويان به د تابوت په ليدو درېدل او په ډېر اخلاص به يې پر ځيگر صليب انځوراوه... ياکُف له دې امله خورا خوښ و، چي د ښخوني مراسم ښه ارزانه، په عزت او له کومي ستونزي پرته تر سره کېدل. کله چي يې لاس د وروستي وداع په نيت د مارفا پر تابوت راتېر کړ نو له ځان سره يې وويل: (څومره ښه تابوت!).

خو له هديرې څخه د راستنېدو پر مهال ډېر سخت نارام او زړه تنگی سو. د ناروغی احساس يې کاوه: ضعف غوندي حالت يې خپل کړی و، په ډېر زحمت يې قدمونه اخيستل او ستوني يې وچ ـ وچ کېدئ. لکه ترې چي وي تر ټولو بتره يې لا دا چي په وهمونو او خيالونو کي راښکېل سوی و، او يو ځل بيا يې ياد سول چي په ټول عمر کي يې پر مارفا هيڅ رحم نه و کړی او تر دې چي پر سر يې يو ځل هم د ميني لاس نه و ورتېر کړی. دا دوه پنځوس کاله وخت، چي دوی په خپل کليوالي کور کي تېر کړی و ډېر په څنډ تېر سوی و او هغه په دې ټوله اوږده موده کي هيڅکله د مارفا په فکر کي نه و سوی او تل يې د يوه سپي يا يوې پيشي غوندې چلند ورسره کړی و. خو مارفا به هره ورځ په خپله بخاری لگوله، له چيني به يې اوبه

راوړلې. په یوه بستر کي به ورسره ویدېدله. د کور ټول کارونه به یې کول. دېګ و دېګبر به یې کاوه او کوم وخت چي به یاکُف د شپې له ودونو او باندارونو څخه مست او بېحاله راستنېدئ نو مارفا به یې ویولون په ډېر ادب پر دېوال راځړاوه او خپله به یې دی هم پر کټ ویده کاوه: او دا ټول کارونه به یې له کومي غوسې پرته په ځېلې او رنځېدلې څېره تر سره کول

په همدغه وخت کي یې روتشیلد مخې ته شین سو او په داسي حال کي چي موسکا یې پر شونډو خوره وه ویې ویل

(کاکا جانه چي رښتیا سي په تاسو پسي ګرځېدم موییسي ایلیچ سلامونه ویل او غوښتل یې چي همدا اوس دستي ورسره ووینئ)

یاکُف د هېڅ شي د اورېدلو زغم نه درلود. زړه یې غوښتل چي وژاړي همداسي چي پر لار روان و ویې ویل

ـ (پربمېږده!)

روتشیلد قدمونه ګړندي کړل، ترې وړاندي سو او په نارامی یې وویل

ـ(دا څنګه کېدای سي؟ موییسي ایلیچ به هرو مرو خواشینی سي! هغه غوښتل چي همدا اوس اوس تشریف وروړئ!)

د یهودي د خبرو کولو انداز. په زوره ـ زوره ساه ایستلو او د سترګو د رپولو ډول او د هغه د څېرې سرو ټپلو د یاکُف نفرت ډېر سخت راوپاراوه د هغه له بالاپوښ ته ورته جامو، چي ځای ځای یې توري پېنې هم درلودې او نازك پاسته بدن څخه یې کرکه راغله او چیغه یې کړه

ـ(ولې لاس نه راڅخه اخلې خر چټله!) پربمېږده پر خپل حال!

روتشیلد هم په غوسه سو او د یهودانو په ځانګړې لهجه یې په لوړ ږغ وویل

ـ(ښاغلې، لطفاً آرام سه، که نه نو اوس د ښې ځپلی پر ښنو دراصلوم!)

یاکُف هم په موټ سوېو لاسونو په چیغه برغل ورباندي وکړ

ـ(ورکېږه حرامزاده! تاسو یهودانو خو بېخي ځمکه راباندي تنګه کړې ده!)

روتشیلد چي نژدې و له ډېري وېري مړ سي همالته ځای پر ځای کښېناست او لاسونه یې د دفاع په ډول پر سر ونیول. وروسته اوچت سو او په ډېره منډه یې تېښته خپله کړه. هماغسي چي په ځغاسته و. لاسونه یې په هوا کي خوځول او ډنګره اوږده ملا یې تاو ـ تاو کېدله. د کوڅې هلکان د دې پېښې په لیدو خوښ سول او د (یهودي دی! یهودي دی!) په چیغو یې په روتشیلد پسي منډه واخیسته. سپي هم یه دوی پسي په غپاوو په ځغاسته سول. یوه سړي په زوره وخندل او وروسته یې په خوله باندي شپیلك وواهه، چي په دې سره سپیانو لا په غوسه پسي وغپل او وروسته لکه یوه سپي چي روتشیلد وداړئ ځکه له هغه لوري یوه له درد او وېري ډکه کریږه واورېدل سوه

یاکُف هماغسي روان و. له ځرځای څخه تېر او له ښاره بهر یوې خوا ته بې هدفه رهي سو. د کوڅې هلکانو ورپسي چیغي وهلې (برنزا! برنزا!) آخر د سیند غاړې ته ورسېد. سیسیانو په خپلو زېر او هیلیو په خپلو ځانګړو ږغونو د سیند پر سر خورا په چټکی وزرونه تېرول. د لمر وړانګو هر څه ټکورول او انعکاس یې د اوبو پر سطحې د سړي سترګي برېښولې. یاکُف د سیند پر غاړه نری کړه وره غځېدلې لار په خوله ورکړه او وړاندي لاړ. یوه پنډه سور مخې ښځه یې ولیدله چي د اوبو له خوا څخه راروانه وه. له ځان سره یې فکر وکړ (عجیبه ښځه ده! دې ته نو وایي د اوبو سپی!) لامبوځای ته چي ورسېد، هلته یو څو هلکانو غوښې ټوټه ـ ټوټه کړې وې او چنګابښان یې نیول. همدا چي سترګي یې پر یاکُف ونښتې په غوسه یې چیغي کړې (برنزا دی! برنزا دی!) دا هماغه لویه زړه (وله) ده چي اوس یې په تنه کي لوی غار دی او مرغیو پکښې ځالي جوړې کړې دي او ناڅاپه یې هغه خپله د طلایي ورېښتانو لرونکې ماشومه لور او د (ولې) ونه، چي مارفا یې یادونه کړې وه ور په زړه سوه. هو، دا بالکل هماغه وله ده: شنه، آرامه او له غمه پېړی خوارکې څومره زړه سوې ده!

تر ولې لاندي کښېناست او تېر یادونه یې ور په زړه کړل. د مخاخ ساحل پر ځای، چي اوس د سېلاب په مخه نیوونکي بند باندي بدل سوی دی او پر هغه لوړه وچه تپه باندي پخوا د ناجو او مجنون ونو ښه ګڼ ځنګلونه وو خو اوس دا هېڅ هم نه وو. ټول ځای صاف او تش ډاګ و او د سیند پر هاغه مخامخ غاړه یوازي یو ښکلی ځوان مجنون (چي بېخي یوې ښکلي نجلی ته

ورته و، لیدل کېدئ؛ او د سیند پر سطحه باندې، چې پخوا بـه وریږ ـ وریږ کښتۍ پر گرځېدې راگرځېدې اوس یوازې هیلۍ او سیسۍ ښکته پورته کېدې. داسې ورته ایسېدله لکه د پخوا په پرتله چې د سیسیو شمېر ډېر لږ سوی و. سترگې یې پټې کړې او د خیال په نړۍ کې یې سپین وزري سیسۍ ولیدې چې ډله ډله الوتې.

ورته عجیبه وه چې ولې په دې ځلوېښتو یا پینځوسو کلونو کې حتی یو ځل هم د سیند خوا ته نه و راغلی او که راغلی هم و نو ولې یې هیڅکله سیند ته توجه نه وه کړې. په حقیقت کې یې د ښار سیند تر یوې ورې ویالې لوی نه و، نو کولای یې سوای چې کبان یې پکښې نیولي وای او بیا یې پر دوکاندارانو، کارکوونکو او د اورگاډیو په تمځایونو کې پر رېړۍ والاوو او پلورونکو پلورلي وای او پیسې یې په بانک کې جمع کړې وای؛ کولای یې سوای چې په یوه وړه بېړۍ کې کلي په کلي گرځېدلی وای او د ویولون رغولو له لارې یې له خلکو پیسې راټولې کړې وای. کولای یې سوای چې په بېړیو کې یې بارکښې او مسافرې کړې وای ـ چې په هر لحاظ تر تابوت جوړولو ښه کار دی. او بالاخره کولای یې سوای چې ښې یې روزلي او په ژمي کې یې د هغوی غوښې د مسکو بازار ته د پلورولو لپاره ایستلي وای. او هرو مرو یې یوازې د ښو د غوښو لاسته راوړنه تر لسو روبلو اوښته. خو افسوس چې هغه له دې ټولو گټو ناخبره او غافل و. څه زیانونه! آه څومره تر حساب تېر زیانونه! او که یې دا ټول کارونه یو ځای کولای ـ هم یې کبان نیولای، هم یې ویولون رغولای، هم یې وړه بار وړونکې بېړۍ چلولای او هم یې ښې روزلای، نو یقیناً چې اوس به یې ډېره زیاته پانگه درلودلای؛ خو له دغو ټولو کارونو څخه یې یو هم حتی په خوب کې لا نه و کړی. ژوند او عمر یې بېځایه، بې گټې او بې لذته تباه سوی و. اوس یې نو پښه د گور پر غاړه وه. خپل تېر ژوند چې به یې کله په ذهن کې راگرځاوه نو له وېروونکو زیانونو پرته ـ چې وېښتان به یې پر بدن سیخ درول ـ نور هیڅ هم نه لیدل. رېښتیا، ولې بشر داسې ژوند نه سي کولای چې له دې ډول زیانونو او تاوانونو سره مخ نه سي؟ او دا پوښتنه راولاړېږي چې ولې یې د مجنون او ناجو ونو د ځنگل ونې وهلې دي؟ ولې له څړځایونو او ورشوگانو څخه گټه نه اخیستل کېږي؟ ولې انسان داسې کارونه کوي چې باید ویې نه کړي؟ ولې ده خپله تل مارفا ته بد رد ویل، رټله یې او په گواښونو یې ځورولې؟ او بیا دا پوښتنه پیدا کېږي چې ولې یې ساعت وړاندې د هغه یهودي سپکاوی کړی او وېرولی یې و؟ او د دې ټولو شیانو پایله له زیانونو پرته بل څه نه راوتله! هغه هم څومره وېروونکې زیانونه! که کینې او نفرت وجود نه درلودای نو انسانانو کولای سوای چې له یو بل څخه گټه اوچته کړي.

له هماغه غروبه یې بیا درسته شپه د خپلې ورې لور څېره سترگو ته دورې هورې کېده او کبان. سر غوځې بتې. مارفا ـ چې د بغل له لورې یوې تږې چرگې ته ورته وه ـ او د روتشیلد رنگ الوتې وېرېدلې څېره او نور ډېر مخونه یې په ذهن کې گرځېدل راگرځېدل او د بېلا بېلو زیانونو په اړه رغېدئ. په پر له پسې ډول پر یوه او بل بغل اوښت راوښت او نژدې پینځه ځله اوچت سو ویولون یې ورغاوه.

په سبا ورځ په ډېر زحمت له ځایه پاځېد او د روغتون په لوري روان سو. هماغه د ډاکټر مرستیال د سړو اوبو د ټکور لارښوونه ورته وکړه او څه اندازه گولۍ یې هم ورکړې. خو یاکُف د ماکسیم نیکلاییچ له څېرې او د ږغ له لهجې پوه سو چې نور یې کار تمام دی او هیڅ رنگه گولۍ به یې ونه سي ژغورلای. په لار کې د راستنېدو پر مهال له ځان سره تر فکر کولو وروسته وپوهېدئ چې مرگ یې تر ژوند په گټه دی. ځکه له هغه وروسته بیا اړ نه و چې وڅښي، وخوري، مالیې ورکړي، دا او هغه وځوروي او دې حقیقت ته په پام سره یې د گټو حساب تر آسمانونو ورته لوړ ښکاره سو چې انسان یو کال نه، بلکې لسگونه، سلگونه او آن زرگونه

کلونه په قبر کې ویدېږي خو یوه نیمکه یې هم نه خرڅېږي. لنډه دا چې ژوند معنا زیان او مرگ معنا گټه. دا تصور البته پر ځای او عادلانه او په عین حال کې ځوروونکی دی، ځکه همدغه عجیب نظم چې نوم یې ژوند دی انسان ته یوازې یو ځل بخښل کېږي نو باید ولې خوسې، بې لذته او بېځایه تېر سي؟

پر خپلې مړینې هېڅ خواشینی نه و، خو همدا چې بېرته کور ته راستون سو او ویولون یې ولید نو زړه یې ډېر درد وکړ. خپل ویولون، چې تر مړینې وروسته یې یتیم او بې څښتنه کېدئ له ځان سره قبر ته نه سوای وړلای، د هغه پر سر به هم هغه څه راسي چې د ناجو او مجنون ونو پر ځنګلونو راغلي وو. زموږ په نړۍ کې هر څه له منځه ځي او له منځه به ځي له کوټې راووت. د وره په خوله کې کښېناست، ویولون یې ځیګر ته ورجوخت کړ او په داسې حال کې چې پر خپل بې حاصله، له زیانونو په ډك او تباه سوي ژوند کې یې فکر کاوه په في البدیهه ډول په ویولون ږغولو سر سو او کومه نغمه چې یې له ویولونه راووته دومره غمجنه او تکان ورکوونکې وه چې له سترګو یې اوښکې رواني سوې. هر څومره چې به په فکر کې ډوبېدئ نغمه به یې هاغومره له درده ډکېده.

د وره څنګ یو دوه ځله وشرنګېدئ او وروسته روتشیلد راڅرګند سو. نیمی انګړ یې په زړورتیا او ډاډ وواهه خو همدا چې سترګې یې پر یاکُف ونښتې ناڅاپه ځای پر ځای ودرېدئ او سره تول غوندې سو، لاس یې ـ ته وا د وېرې له وجې ـ داسې خوځاوه لکه غوښتل چې یې په خپلو ګوتو وخت بیان کړي. یاکُف په مهربانۍ ځان ته وروغوښت او ورته وې ویل:

ـ راسه وېرېږه مه. کار نه در لرم.

روتشیلد په وېره او شك وړاندې ورغئ او په دوه متري کې ورته ودرېد. وروسته یې په خپله ځانګړې لهجه وویل:

ـ وهئ مې مه! دا ځل هم موییسي ایلیچ رالېږلی یم، ویل یې: وېرېږه مه یو ځل بیا ورسه ورته ووایه چې رانه سي زموږ کار نه سمېږي، په چهار شنبه یو واده دی، هلنه ورځو ښاغلی پووالف خپله لور یوه ښه سړي ته ورکوي.

وروسته یې سترګې سره راټولې کړې او زیاته یې کړه:

ـ ډېر لوی واده وربانډې جوړوي.

یاکُف، چې ډېر په زحمت یې ساه ایستله او تنفس کوله وویل:

ـ زه نه سم درتلای، ناآموزه یم، او بیا یې ویولون ږغول پیل کړل، د اوښکو سیل یې له سترګو روان سو او ځاځکې ـ ځاځکې یې پر ویولون ورولېېد. روتشیلد چې هغه ته ورنژدې سوی او لاسونه یې د چلیپا په ډول پر ځیګر نیولي وو په ډېر دقت ورته غوږ ـ غوږ و. د هغه د څېرې حیرانی او وېرې ورو ـ ورو خپل ځای غم او همدردۍ ته پرېښود: سترګې یې د هغه چا په څېر چې نیمه ویښ او نیمه ویده وي واړولې او تر شونډو لاندې یې وویل: وووواخ! او د اوښکو لوی ـ لوی ځاځکې یې پر انګیو ورغړېدل او پر شنه بالاپوښ ته ورته جامو یې وڅڅېدل.

یاکُف هغه ټوله ورځ په ځای کې پروت و او نفستنګي یې کېدله. غروب مهال چې کله کشیش د وصیت اورېدني لپاره ورته راغئ نو یاکُف د خپلې حافظې نیلی وځغلاوه او یو ځل بیا یې د مارفا ځورېدلې څېره او د یهودي نهیلې کړیکه ـ په هغه ورځ چې سپې داړلی و ـ په ذهن کې راوګرځوله او په یوه کمزوري ږغ یې وویل:

ـ ویولون مې روتشیلد ته ورکړئ.

کشیش ځواب ورکړ:

ـ په سترګو، ډېر ښه. او اوس ټول خلك په ښار کې له یو بله پوښتي: روتشیلد دا دومره عجیب ویولون له کومه کړی دی؟ رانیولی یې دی، غلا کړی یې دی او که یې ګرو کړی دی؟ موده ـ موده کېږي چې روتشیلد اوس شپېلۍ ږغول پرې ایښې دي او یوازې ویولون ږغوي. خو کله چې هڅه کوي هغه نغمه ورږغوي چې یاکُف د وروستي ځل لپاره په خپل کور کې ږغولې وه نو ساز یې دومره غموونکی او له درده ډك سي چې د ټولو اوښکې راوخوټوي او خپله دی هم وړاندې تر دې چې پیل کړې نغمه سر ته ورسوي د سترګو تر پټولو وروسته مخ اړوي او وایي: وووواخ! د هغه دا نوې نغمه دومره د ټولو خوښه سوې ده چې د دولت مامورین او د ښار شتمن خلك یې تل خپلو مېلمستیاوو ته وربولي او اړباسي یې چې دا نغمه تر لس ځله هم ډېره ورږغوي.

پای

ببر بدلم چي هسي نه د هوا رخه رابانډي راسي او دغه د خوښي شيبې مو را بدمرغه نه کړي . زرپاڼي ما ته هيڅ نه کتل او نه يې ستر ګي پر ستر ګو رابرابرولې، ځکه چي شرمېدله .

د "ګامن" غپا زه له خپلي ښېلي نرۍ ځخه را وايستم، ومي ليدل چي يو سپور زموږ پر لور راځغلي. زرپاڼي ته مي وويل چي در ولاړ پړه او سپره سه، که زه ووژل سوم نو ته وتښته او سرفراز خان ته ځان ورسوه، په عين حال کي مي چاقو هم راوايستی او د سپاره په انتظار شه چمتو ودرېدم . ومي ليدل چي همغه ترکمن ځوان عمرخان دی . زرپاڼه ناسته وه او مخکي ته يې کتل. عمرخان راورسېد او توره کښلې له آسه راکښته سو او ماته نژدې ودرېد . تر لږ مکث وروسته يې ښه خره ښکنځل راته وکړل او ويل يې :

زما ښځه دي چيري بېوله؟

زما ښځي ته دي ليک کښلی ! غوښتل دي چي زه دي وژلی وای ! اوس دي حق په خپل لاس کي در ايردم .

زما وړوکی چاقو د ده د توري سيال نه و، ورته ومي ويل چي پر تا ږوندي ځوان مي افسوس راځي چي په ګناه ولړل سي ! ستا لپاره نوري ښځي هم ډېري دي، د بل چا ښځي ته کتل له عياري او ځواني ځخه ليري کار دی . غلا او بې شرفي د غښتلو کار نه دی . ولي خپل ځان د خدای ﷻ او رسول ﷺ په وړاندي شرموې، آيا ته نه پوهېږې چي زنا خدای ﷻ نه بخښي، آخر زه هم تا غوندي مسلمان يم، دغه ښځه زما په نکاح ده . . .

زما خبرو پر عمر خان اغېز وکړ توره يې پر مخکه وغورځوله او په فکرونو کي ډوب سو .

زرپاڼه له ځايه ولاړه سوه او په ترکي يې وويل : موږ شيعه ګان يو، زموږ نکاح د سني مذهب سره مطابقه نه ده . فکر مي وکړ چي بل څه مي اروېدلي دي، ورته ومي ويل چي لېوني سوې يې، ولي داسي خبري کوې؟، زرپاڼه له ما څخه ليري سوه او د عمرخان خنګته ودرېده او په يوډېر غمګين ډول يې وويل : اجمله ډېر وخت کېږي چي له تا سره مي مينه پای ته رسېدلې ده، وروسته مي ته د يوه ورور په توګه خوښېدلې، بس يوازي په دې خاطر درسره اوسېدلم چي ما ول زما ښلتون به دي لېوني کړي، مګر دغه وخت پر ما خورا په زحمت سره تېرېدی، اوس که زه واقعاً در باندي ګرانه يم او مينه راسره کوې نو ما پر خپل حال پرېږده او ولاړ سه .




داسي وم لکه تر ښنو لاندي چي مي سکروټې پرتې وي، له ځايه مي ټوپ وهل او پر زرپاڼي مي حمله وکړه، عمرخان زموږ منځ ته ځان راواچوی، او د توري څوکه يې له سر تېره جګه راته

ونیوله . خان وژلی راته ښکاره سو. نابېره تر کمن ځوان غوځار سو او توره یې له لاسه ولوېده ما د برېښنا غوندې خپل چاقو د تر کمن ځوان تر غاړې ور ورساوه او داسې ښه ببخکي مې پسې پر راکش کړ .

خوار کې ځوان لاس او پښې سره غورځول او ما د لېوني په څېر خپلې خندا ته زور ور کړی و . زرپاڼي د لېونی غوندې ناري وهلې چې "زما ځوان دې راوواژه. په څه ظلم دې وواژه، زما ته نه یې خوښ. ته بې غیرته یې. هیڅ شرافت نه لرې !" نور پاته چټیات مې وانه روېدل. یوه نه سوم چې څه ېښېښ سول خو خپل چاقو مې د تر کمن ځوان له غاړې راکش کړ او د زرپاڼي نس مې په ور څیري کړ .



نږۍ مې تر ستر گو توره تیاره سوه کله چې پر هوښ راغلم او په خپل بېروونکي کار خبر سوم. نو ناحقه مې دې خوا آخوا حغستل او له مځکې و آسمانه مې مرسته غوښته . مگر بېله یوه ډاروونکي سکوته مې بل هیڅ نه اروېدل .

زرپاڼي ته راغلم او نس مې یې په شال ور وتاړه، غوښتل مې چې سپره یې کاندم او بو یې زم، ږغ یې اوچت سو، ورته ومې ویل چې درخه چې خو او ډاکټر ته دې بوزم، په ډېر کمزوري ږغ یې وویل چې هیڅ گټه نه لري، مگر ما یوازې مه پر بېرده لاس مې ونیسه !!!

تر لاس مې ونیوله او مچوله مې، ستر گې یې پرانستلې او په غمجنو کتو یې راته وویل چې اجمل جانه زه دې وبخښلم؟ ورته ومې ویل چې هو گرانې ومې بخښلې، ستا گناوې زه پر خپله غاړه اخلم .

یو مړ تبسم یې وکړ. ستر گې یې پټې کړې او روح یې حق ته وسپارله .

اوه خدایه پر ما څه تېر سول. د زرپاڼي پر اعمالو یوه سپینه پرده وغوړېدله او ټولې گناوې مې یې هېرې کړلې . لیدل مې چې بېگناه زرپاڼه مې پخپله وژلې ده، لېونی سوم او د بیابان خاورې مې پر سر بادولې .

د تر کمن ځوان له خولې او ستونې څخه د وینو فوارې رواني وې، مړې مې مخاطب کړل او ورته ومې ویل چې زما او ستاسو د جنایتونو اصلي لامل فریدون دی، تر څو چې مې له هغه څخه غچ نه وي اخیستی آرام به نه کښېنم . زرپاڼه مې په خپلو اوښکو ولمبوله او د دښت گلان مې پر وپاشل .



پر آس سپور سوم. پر گامن مې ږغ کړ او حرکت مې پیل کړ. څو گامه وروسته بېرته ودرېدم او زرپاڼي ته مې وکتل چې زما سپي یې په پښو او لاسو لوېي کولې. سپي ما ته کتل او په خورا افسوس یې ژړل، ویل یې چې ولې خپله مېرمنه پر پرېږدې او ځې؟ راسره مرسته وکړه چې راویښه یې کړو او له ځان سره یې بوزو . . . ښه گړی مو وژړل او د زرپاڼي له ساړه وجود سره مو

راز و نیاز وکړ . د لېوني په څېر مې پر نامعلوم لور سفر پیل کړی و او هیڅ موخه نه راته معلومېدله. څو تنه سپاره مې ولیدل چې زما پر لور را روان دي، زه هم چابک سوم تر څو ژر تر هغو ځان ور ورسوم، چې ژر مې مړ کړي اوس نو ما هیڅ هیله نه لرله او نه مې کوم آرمان پر زړه پاته و، له بده مرغه چې سپاره د سرافراز خان نفر ول چې زما د ساتنې لپاره راوتلي ول .

کله چې مې هغوی ته خپله کیسه وکړه نو راته ویل یې چې تاسو د دې نږۍ د لویو بدبختانو له ډلې څخه یاست او ستاسو د درد چاره یوازې په مر گ سره کېږي .

یوه روځ وروسته له ځینو سپرو او مالو سره استرآباد ته ولاړم او له هغه ځایه په ډېره بېړه تهران ته ولاړم او خپل ورور مې ولیدی . ورور مې څو روځې مخکې زما له نیولو خبر سوی و او په دغه اړه یې اقدام هم کړی و . د فریدون پوښتنه مې څنې وکړه ، ویل یې چې ښایې یا له کډوالو او یا له المانیانو سره تللی وي .

برابر د فریدون کور ته ولاړم او هورې مې له سختې سره وکتل، هغې د زرپاڼي پوښتنه راځخه وکړه، ورته ومې ویل چې هغه په لاره کې خوابدې سوه او مړه سوه . ویې ویل چې اوس نو باید د فریدون لیک در کړم .



د فریدون لیک په دې ډول دی .

زما گران ملگرې اجمله ! دا تمه نه لرم چې دغه غمگین لیک ولولې او له دغه رازه خبره سې . څرنگه چې ویلې مې دي چې ته باید دغه لیک هغه وخت ولولې چې زرپاڼه دې پرې ایښې وي . ستا خوښې پر خپلو ټولو شیانو غوره بولم او خپل ځان ستا له ملگریتوب څخه بې برخې کوم . که ممکنه وي چې ته له خپلې معشوقې سره واوسې او خپل ژوند ته په مینې او پریالیتوب دوام ور کړې، نو زه چمتو یم چې خپل ځان د تل لپاره ستا په وړاندې ټیټ او پست وونم .

د دغه لیک لیکل مې دا مانا نه لري چې زه برائت واخلم. یوازې یې د دې لپاره لیکم چې ستا د رنځوري اروا یو لږ څه درملنه په وسې، ځکه احتمال لري بلکې زه پر دې یقین لرم چې ژر یا وروسته به ته د زرپاڼي په ماهیت او اصلیت ښه ترا پوه سې او د طبیعت ناخوانې به درته معلومه سي .

کله چې خبر سوم چې خراسان ته تللی یې نو ستا پر سر مې د بلا تېغ ولیدی، ځکه چې پوهېدم چې زرپاڼي په څه خاطر هغه لور ته زړه ښه کړی دی، مگر زما له لوري هغه وخت هیڅ پر بکړې گټه نه درلوده . په هغه روځ هیڅ له کتابتون څخه نه راووتم او یوازې ستا په اړه سوچ راپاته و. ستا په وجود کې مې د مینې اغېزې لیدلې، داسې ولکه عقل چې دې له لاسه ور کړی وي، بېله زرپاڼي دې په دې نړۍ کې بل هیڅو ک نه لیدی . خیال دې یوازې د هغې پر شاوخوا باندې طوافونه کول . آن چې د هغې خوی او بوی دې لا اخیستی و او خپل اصلي شخصیت دې لا هېر کړی و . تاسو ځان غوښتونکي نه واست، ښځایه موډ او تجمل

دي نه و خوښ، هغه مینه او علاقه چې دي له لوستلو سره درلوده او ځان دي پخوا یوازي په کتابونو کې لیدی، د زرپاڼې په موجودیت کې هغه خپله د لوستلو مینه لا درڅخه هېره سوه .

که څه هم مینه زموږ د دردونو درمان دی، مګر که غلطه وختله نو په یوې بدشکلې بلا بدلیږي . مینه اور دی، که دا اور نه وي، کور به مو سوړ او تیاره وي، خو که بېځایه ولوېدی کور مو راسوځي .

زه چې هر څونه فکر وکړم مګر بیا هم ستا او زرپاڼې د ارواوو تر منځ آن یو نازک تړاو لا نه وینم .

ما هغه روځ زرپاڼه ډېره ښه وپېژندله چې تا تې ویل چې ما ستا په خاطر خپله مور، پلار او ټول خپلوان پرېښوول، مګر پر تا د مینې د غلبې له وجې د هغې هر عیب پټ سوی و تر څو چې تا د هغې ټول اندونه ومنل او آن د هغې تقلید دې هم پیل کړ .

هر وخت چې به مې ستا په حالت کې بدلون ولیدی نو ډېر ارمان به راته ودرېدی، بیا به مې له ځان سره وویل چې څه ته نو څه پوهېږې، ښایي چې دغه حالت د ده په ګټه وخېژي .

ځان مې په دغو خبرو څه خوشحالاوه مګر ستا عاقبت ډېر خطرناک راته معلومېده، او زه په دې هیڅ نه پوهېدم چې ته څنګه یوې شهوت پرستې ښځې خطا ایستلې او ستا سپېڅلې اروا یې په خپلو شهواني ټېلو درآراموله .

ډېر وخت نه و تېر سوی چې خبر سوم چې زرپاڼه له یوه سره نه، بلکې له خورا ډېرو خلکو سره جوړه ده .

له بېوفا ښځې سره مینه، مینه نه بلله کېږي، په دې نړۍ کې تر وفا او ژمنې بله ښه غوښتنه نسته . وفا د اروا ټېکاو او آرامي ګڼله کېږي هغه اروا چې وفا ونه غواړي، خپله هم وفا نه لري .

مینه خواري او ټیټوالی نه دی، بلکې ډېرو لوړو اسمانونو ته د اروا الوتنه بلل کېږي، یو مخ خوند او شوق دی، مینه یعنې د نړۍ پر ضد د دوو ارواوو یووالی، کله چې دوه سپېڅلې زړونه سره وګنډل سول نو د دنیا ټولې بلاوې غواړي چې وتښتي .

هغه چې زموږ د خوندونو په پیاله کې زهر رااچوي معشوق نه دی، د آزادۍ په الوتنه کې ښایي له موږ سره نه وي ملګری، هغه یوه ډېره ده چې زموږ پر وزرونو تړل سوې ده، باید چې له دې ځان خلاص کړو . ژوند باید یو مخ خوند او خوښي ولري او دغه کار بېله مینې ناشونی ښکاري، که مو یار او نګار نه و مهربانه نو باید له خیالي معشوق سره خوښ واوسو .

زرپاڼې پر یوې ځرخندوکې دایرې خپل ځان ننداري ته وړاندي کړی و، او ډېره بېربېدله چې له خپل حسن او رونقه ونه لوېږي، ستا مینه یې د خپلې ښکلا سره سیاله نه بلله، غوښتل یې چې پر هر ګام یې د ښکلا ستاینه وسي او هر ګړی د عجز سرونه ورته ټیټ سي . غوښتل یې چې هره روځ یو نفر د خپل وصال په جنت سره ونازوي، او بله روځ یې د هجران په لمبو وسوځوي . داسې کوچنې ته ورته وه چې پر هر شي چاقو کښوي .

ته پوهېږې چې زه د زرپاڼې له حاله خبر سوم نو څه را باندې تېر بېدله؟ په پوښتنو او ګروېږونو مې پیل وکړ او له بده مرغه چې ډاډه سوم چې زرپاڼه ډېره خرابه ښځه ده، نو ستا په پوست در ننوتلم او ډېره هڅه مې کوله چې تا له دغه دراته خوبه راویښ کاندم او له حقیقته دې خبر کاندم . مګر ته دونه د زرپاڼې په مینه کې ډوب وې چې که دې دغه ټول حقایق لیدلي هم وای، باور به دې نه وای کړی .

مګر دلته نو یوازې ټوله ګناه د مینې نه وه، ته د خپلو ښېګڼو له وجې هم ړوند او کوڼ وې، ډېر پېچلې علمي مطالب دې پېژندل، مګر د زرپاڼې له موضوع سره پوره نابلده وې .

ما له زرپاڼې سره په لومړۍ لیدنه کې د هغې په حرکاتو کې د یوه بې پردې شهوت اغېزې ولیدلې، مګر جالبه دا وه چې زما تر ستر ګو ډېره بده او بدرنګه ایسېدله . په دوهمه او دریمه کتنه کې یوه سوم چې زما هر لور ته یې لومې ایښې دي، له دې کاره مې بد هم نه راتلل ځکه چې پوهېدمه چې خپلې موخې ته نژدې کېږم او هغه موخه دا وه چې ما ویل په دغو لیدنو کتنو کې به د زرپاڼې ښه سر ور خلاص کړم چې اصلي لارې ته را واوړې او له دغو ناروا کارونو لاس واخلي، هغه ډول چې انتظار مې یې درلودی، زرپاڼه زما له بې پروایې څخه تر پزې راغلې وه، زما د ښکېلولو لپاره یې هر ډول شاهکارونه وپنځول، ما چې به هر څونه سړه وضعه ورسره کوله نو د دې ګرمي به لا پسې ډېرېدله، څو چې یوه روځ یې راته وویل چې ما په دې درسته نړۍ کې ستاسې په څېر سوړ سړی نه دی لیدلی، آیا تاسو زړه نه لرئ؟ ورته ومې ویل چې ولې زړه نه لرم او زه فکر کوم چې په دې نړۍ کې به زما په څېر حساس زړه نه وي، ویې ویل چې نو ولې مې ستا له خولې د مینې او عشق یوه خبره هم نه ده اروېدلې، ستاسو له خبرو څخه د زړه سوی بوی نه راپورته کېږي، داسې ښکاري چې په خپل ټول ژوند کې دې له چا سره مینه نه ده کړې .

ورته ومې ویل چې تاسو نه پوهېږئ د دغې پردې تر شا یو عالم شور او غوغا پټه ده، هغه کشمکش او جګړه چې زه یې له زړه سره لرم، بل څوک به یې نه لري، مګر څه وکړم چې تر اوسه مې یوه ښه جوړه نه ده پیدا کړې .

زرپاڼه ډېره سپین ستر ګې وه او ستاسو د ښو اخلاقو او ښېګڼو په پایله کې ډېره بې حیا سوې وه، ویل یې چې زه یو څوک پېژنم چې پر تا مینه ده، ستا په مینه کې آن لیونۍ ده او دا هغه څوک ده چې تاسو یې غواړئ . . . ورته ومې ویل چې دغه ملکه څوک ده او په کوم اسمان کې اوسي؟ ویل یې چې هغه تا ته مخامخ ناسته ده . غوښتل یې چې په غاړه کې مې لاسونه راواچوي . مګر ما ډډه ترې وکړه او ورته ومې ویل چې ته نه یې آزاده، ستا وجود له اجمل سره ګرو دی او ته د اجمل د مینې او شرافت په ملکیت کې یې، ته په کوم جرئت او لامل غواړې چې له هغه سره خیانت وکړې؟

ويې ويل چې گناه ټوله د اجمل ده چې له ما پر ته نور زر فکرونه هم لري، زه داسي څوک غواړم چې پر ته له ميني بل کار ونه لري .

ومي ويل چې اجمل خوار کي خوله تا پر ته بل هيڅ فکر او ذکر نه لري، ويل يې چې البته هر سړی د خپلي ښځي په فکر کي وي، مگر زه په يوه عادي ژوند قناعت نه کوم، ما د ميني په توسن له ټولي نړی څخه لاس اخيستی دی او غواړم چې ټول عمر په هغه مينه پسي ولاړه سم .

ورته ومي ويل چې دا ته چې يې په اړه خبري کوې، دا مينه نه ده، بلکي شهوت دی، کاشکي چې ته پوهېدلای چې شهوت چې تر ميني ځار کړه سي څونه خوند لري !

هغه روځ پر دغه ځای پای ته ورسېده، څرنگه چې انتظار مي درلود چې زما له سکوته يې صبر خلاص سو، نو يوه اوني وروسته تر تا وړاندي زموږ کور ته راغله، کله چې مي مور له خوني ووته او دا يوازي راسره پاته سوه، نو په ډېره تلوسه او تلوار يې د ميني څرگندونه کوله، ورته ومي ويل چې زما زړه هغه چا ته ځانگړی دی چې په بل کور کي نه وي اوسېدلی. رنگ يې والووت او ژبه يې بنده سوه. له فرصته مي گټه واخيسته او ورته ومي ويل چې ستا له ټولو بدو کارونو خبر سوی يم. پوهېږم چې چيري ځې او چاته ورځې. نه شرمېږې چې ما ته د ميني يادونه کوې؟

ښله دې چې راته وگوري، ول ټوله گناه د اجمل ده چې زه يې آزاده پرې ايښې يم چې هر ځای وغواړم تلای سم او ټول اختيار يې راکړی دی چې هم بازار ته ووزم او هم کوڅې ته . ته نه پوهېږې چې زه څونه مينان لرم او څونه راپسي مړه دي؟ ورته ومي ويل چې ښه نو اجمل دا گناه کړې ده چې ستا پښو ته يې ځنځير ونه نه دي دراچولي او آزاده يې پرې ايښې يې؟

افسوس د هغه خوار پر حالت، کاشکي چې خپله ښځه يې د يوه ماشوم په څېر ساتلې وای چې هره شېبه يې تر ستر گو لاندي وای .

لنډه دا چې بسته کتاب خبري مي ور ته وکړې مگر څه فايده چې غوږ لوښی و او اوبه پر توی سوې، زړه مي غوښتل چې دغه ټول رازونه درته ووايم چې زرپاڼه له ځانه وشړې، مگر بيا به مي له ځانه سره وويل چې څه مې کوه گوندي خپله لاري ته راواوړي .

زرپاڼه روځ په روځ زما سره د ميني په خاطر ليوني کېدله او قسمونه يې خوړل چې نور مي له هر چا سره اړيکي شلولي دي او آن چې سلطان مهدي خان چې ډېر يې خوښ و هم پرې ايښی دی .

بالآخره زرپاڼه په دې راضي سوه چې زه ورسره د ورور غوندي رفتار وکړم .

هغه اسری روځ چې ته زموږ کور ته راغلې تر تا يو ساعت وړاندي زرپاڼه په ډېر پرېشان حالت کي راغله او ويل يې چې هر څه چې غواړې ويې وايه، مگر زما نور اجمل هيڅ نه خوښېږي، که دوستي نه راسره کوې نو زه اجمل پر پرېږدم او د سلطان مهدي خان لپاره خراسان ته ځم . په عين حال کي يې زه هم تهديدولم چې د اجمل په وړاندي دي آبرو در خاوري کوم . ما ورته وخندل. ځکه چې پوهېدم چې ته پر ما په هيڅ کون بد گومان نه کوې، مگر زه خطاوتلی وم. زما خندا لا نه وه خلاصه سوې چې نابېره مي ته په الوتي رنگ کي د ځان په وړاندي وليدلې .

مگر ته ما دونه بې انصافه نه گڼلې، هغه دوولس زره تومانه چې دي زما مخي ته راوغورځوله په هغه دي زما اروا ډېره سخته راوځپله، دوه زره تومانه چې په ما پوري يې اړه لرله وامي خيستل او پاته لس زره تومانه مي ستا په نامه په بانک کي کښېښوول . فکر مي کاوه چې کله دي اور مړ سي، نو به دي ستر گي در خلاصي کړم کله چې مي واورېدل چې له زرپاڼي سره خراسان ته تللی يې نو ډېر خوشحاله سوم، ځکه چې احتمال يې درلود چې هلته به زرپاڼه له سلطان مهدي خان سره ولاړه سي او ته به يې له شره خلاص سې .

گران اجمله ! زړه مي غوښتل چې له تا سره گپ شپ ولگوم. مگر خبر راورسېدی چې بايد له کډوالو سره ولاړ سم، کاش چې ته دلې وای او زما د مور او خور ساتنه دي کولای، ځکه چې زه باور لرم چې له دغي جگړې به ژوندی نه سم راستون .

ځم چې خپل ځان تر وطن ځار کاندم، تا پر لوی خدای ﷻ او پر پاک زړه دي سپارم .

ستا ملگری فريدون

تر دغه ليک لوستلو مي نو نور د فريدون پر بې گناهي باور راغلی . خپله ټوله شتمني مي د فريدون خور او خپل ورور ته وسپارله او هغوی مي سره مېړه او ماينه کړل . هر لور ته مي د فريدون د پيدا کولو لپاره تلاښ وکړ مگر پيدا مي نه کړ . ځيني وايي چې وژل سوی دی او ځيني بيا وايي چې ښايي اسلامبول او يا هم اروپا ته تللی وي، مگر هر ځای چې وي زه به يې پيدا کوم .



ساعتونه وروسته چې مي دغه سر گذشت پای ته ورساوه نو دې پايلي ته ورسېدم چې که له يوې خوا زموږ ټولي خوښي او ښادي د ميني او وفا له وجې دي، نو له بله پلوه زموږ ټول رنځونه او بدمرغی د بېځايه ميني او وفا له وجې دي .

کله چې اجمل ته ورغلم نو د زکندن په حال کي و، پر لاسو او بدن مي ښکل کړ، له ميني په ډک نظر يې راوکتل او ستر گي يې پټي کړې او روح يې زما په غېږ کي وسپارله .

پای



ژباړن
عبدالجبار
ترنګ

لیکوال : - مارک ټواین

# شاه او ګدا



مارک ټواین Mark Twain د امریکایي لیکوال (ساموېل لاسنګهورن کلمنس) پور سوی (مستعار) نوم دی چې د ۱۸۳۵م د نومبر پر ۳۰مه د میسوري د فلوریډا کې په یوه غریب کاله کې زېږېدلی دی.

ده د حروفچینی، پر (مي سي سي پي) سیند د بېړۍ چلوني او د نیواډا د طلا په کان کې د کارکوونکي بېلابېلي دندې د ژوندانه د بهیر له غوښتني سره سم ترسره کړې دي. په دويم وار د حروفچینی د کار له پیلولو سره سم يې لیکوالي هم شروع کړه چې لومړنیو لیکنو يې د طنزیه خوږلنی د لرلو له امله په ډېرو زړونو کې ځای ونیو.

نوموړی لیکوال د خپلو لیکنو د شهرت په ترڅ کې اروپا، هند، استرالیا، مصر او فلسطین هیوادونو ته سفرونه تر سره کړي چې همدغو سفرونو يې د قلم څوکه نوره هم غښتلې او تېره کړه.

په ډېرش کلنی کې يې له یوې امریکایي شتمنې سره واده وکړ. په ۱۹۰۰م کې يې د لندن له اکسفورډ پوهنتون څخه افتخاري ډاکټري واخیسته. پر ۱۹۰۹م د لور (ایډي) بېلتون دومره وځاپه چې یو کال وروسته (۱۹۱۰م) د ژوند پر پنځه اوپایم کال ومړ.

لاندنی ناول يې د شاهکارو ناولونو په لومړۍ کرښه کې ولاړ دی، چې ما يې له پارسي ترجمې څخه د نامه په لړ بدلون (شهزاده و ګدا_شاه او ګدا) ژباړلی. نور آثار يې دا دي:

د هایکل بري فین پېښې، د مرګ ډیسک، تېر کلونه، د استوا کرښې په لټون، پردي بې ګناهان، د شکاګو بزګر، یو بې ګناه ښاري، انسان څه دی؟، د شاه ارتور په ماڼۍ کې یو امریکایي، د کالاوراز نوموتې چونګښه، د ټام سایر پېښې، ساده زړې، په سفر کې، زرین پړاو، د مي سي سي پي ژوند او ساده ویلسن، د مېلمستون کوڅه ډبې او هغه سرې چې هاکل بري فین يې بې لارې کړ.

نوموړی ناول د دوو بېخې سره بېلو نړیو د اتلانو یو داسې انځور وړاندې کوي چې هر څه پکښې پخپل طبیعي او واقعي انداز انځور سوي، د مسکین، غریب، بډای او شاهانه چاپېریالونو تمثیلونه د دوو بې پروا ماشومانو زړونو پر ستېجونو په ډېره ښه توګه وړاندې سوي چې که په غور ولوستل سي ما غوندي به يې په ژوند کې د دوو نااَشنا دنیاوو لومړنی خو پخه ننداره وي.

ژباړن

## (۱)

## د شهزاده او ګدا زوکړه

د اتلسمي پېړۍ د منځ په یوه ورځ د لندن د لرغوني ښار د (کانټي) په نوم یوه غریبه کورنۍ کې یو داسې ماشوم نړۍ ته راغی چې مور و پلار نه غوښتی. په همدغه ورځ د (ټوډور) په نوم یوه شتمنه انګرېزه کورنۍ کې یو نوی ماشوم وزېږېد چې مور و پلار يې په ټولو حواسو هیله من ول او د انګلستان ټول اوسېدونکي هم ورته سترګې پر لاز.

له اوږده مهاله وګړي د دې ماشوم په هیله ول او خدای ته يې د هغه د زوکړې دوعاګانې کولې. د دې ماشوم د زېږېدو پر مهال، وګړو د ډېر شوق او خوښۍ څخه لېونتوب کاوه او خانونه يې اوزګارول. له مینې او محبته يې یو بل په غېږ کې نیول، ښکلول، چیغې او نارې يې وهلې.

هر یوه خپل کار خوشي کاوه او له شتمن څخه واخله تر ګدا ټولو جشن او خوښي کوله، نڅېدل. سندرې يې ویلې او شراب يې څښل. دغه جشن او خوشحالي څو ورځې و شپې روانه وه. لندن ښار د ورځې له خوا له برېښو او بامونو څخه په راځوړندو سرو ښکلو بیرغونو او په لاړو کوڅو کې د رڼا او سندرغاړو د ږغونو له امله په خوښۍ کې ډوب و او داسې ښه بڼه يې خپله کړې وه چې له هر لوري په زره پوري او لیدني وه. د شپې له طرفه يې د بوخوونکو اورلوبو او هره خوا خپرو خوشحالو او په چیغو نارو کې ورګو ډګرو له کبله یوه نوې حالت لرله.

په ټول انګلستان کې یوازې د نوي زېږېدلي شهزاده (اډوارډ ټيوډور) توري د خلکو پر شونډو کېښته پورته کېدل. په داسې حال کې چې نوموړی ماشوم په ورېښمینه او اطلسي ځانګو کې پروت او شیدې يې رودلې او د خوښیو له دغو چیغو څخه داسې ناخبره و لکه د ده په چوپړ کې ورکو اشرافزادګانو، درباریانو او د سلطنتي کورنۍ غړو ته چې يې هډو پام نه وي. خو بل لوري ته په یوه زړه او خیري توټه کې د پراته (ټام کانټي) په نوم ماشوم په زوکړه او په ورځخه بېزاره کورنۍ يې هېڅوک نه خبر و او نه يې په اړه ږغېدل.

## (۲)

## د ټام د ژوند لومړی پړاو

(راځئ کلونه تر شا پرېږدو!)

لندن داسې یو ښار و چې پر جوړېدو يې پنځلس سوه کاله اوښتل او په هغو ورځو کې له سترو او نوموتو ښارونو

څخه شمېرل کېدی. لندن، سل زره اوسېدونکي لرل او څینو دا شمېر دوه ځله بلله

د دې ښار کوڅې او واټونه په تېره د لندن پل شاوخوا چې ټام کانټي پکښې اوسېدی، تنګ، تیاره او ډېره ککړه وه

ټولې ودانۍ له لرګیو څخه جوړې وې. د هرې یوې دویم پوړ تر لومړي پراخ و او هر څومره به چې لوړېدې. نوري به هم پراخېدې د دغو ودانیو په جوړونه کې صلیب ته ورته ستونونه کارېدلي ول چې منځونه یې له ډول ـ ډول مسالو او ګچو څخه ډک ول

دغه ستونونه یې د کور د څښتن له سلیقې سره سم په سره، آبي او تور رنګ رنګول. چې همدغو نقاشیو ودانۍ ډېرې ښکلې ایسولې. کړکۍ ټولې وړې. هنداري یې لوزي ډوله او پنډې وې. دروازې هم پر یوه لوله څرخېدې

هغه کور چې د ټام پلار پکښې اوسېدی، د آفال کورټ په نوم یوې کنډواله بندې کوڅې په پای او پوډینګ لین دروازې دباندې پروت و

دا یو کوچنی او کنډواله کور و د ښار یو شمېر غریب او شتمن پکښې اوسېدل د ټام کانټي کورنۍ د درېیم پوړ په یوه خونه کې پرته وه مور و پلار یې د همدغې خونې په یوه ګوټ کې د بستر په نوم پر یوه شي ببدېدل خو ټام. نیا او دوو خویندو ـ بت او تن ـ همدغه بستر هم نه درلود او ټول د خونې په ټس کې هر ځای چې یې زړه غوښتل ـ پرېوتل په دغه خونه کې یو څیري او ککړ پټو او څو زړو او څیرو بوریاوو ته ورته داسې څه ول چې د بستر په نوم نسوای یادېدای. د ورځې له خوا یې لوله کاوه یوه کونج ته یې غورځاوه او د شپې یې بېرته هواراوه او پر پرېوتل

بت او تن دوې پنځلس کلنې غبرګولې خویندې وې ډېرې خوشحالې او مهربانې وې خو په ښکاره ککړې. خیرنې او بې عقلانې

مور یې د دوی غوندې وه، خو نیا او پلار یې دوه ناپاك او ککړ انسانان ول ځای و ناځای یې شراب څښل او چې مست به شول جنګ و جدل به یې پیلاوه او هر څوك چې به یې مخې ته ورتلل واهه او سپکاوه به یې

دا دوه خبیثان به تل یا مست او یا وږي ول. ځکه چې کانټي غل او مور یې فقیره وه دوی دواړو د خپلو ماشومانو فقیرولو ته هم ملا وتړله. خو پر دې ونه توانېدل چې غله هم ځنې جوړ کړي

د دې کور د غلو په منځ کې. یو داسې شریف او روحاني بوډا هم اوسېدی چې په هېڅ ډول یې ورته والی نه ورسره درلود دا بوډا هغه څوك و چې د انګلستان پاچا له کلیسا ایستلی و. خو تلپاتي حقونه یې ورته ټاکلي ول

دغه نېك کشیش خپل وخت د کور له ماشومانو سره پر خبرو تېراوه او هڅه یې کوله چې ماشومانو ته پټ د ژوند آره. پاکه او شریفه لار وښیي

(پلار آنډریو) په دې ډول ټام ته لږ لاتیني ژبه او لیکل و لوستل زده کړل او تلاښ یې کاوه چې دغسې کار له نجونو سره هم وکړي خو نجونې د خپلو همزولو له پسخند او ټوکو څخه وېرېدې ځکه د دوی په فکر ښایي همزولانې یې د دوی هوښ او ځراکت ونه زغمي. نو له درسه یې لاس واخیست

د آفال کورټ ټوله سیمه د کانټي د کور په شان د عسل د غومبسو خالې ته ورته وه مستۍ، جنګ، چیغې او نارې د سیمې د اوسېدونکو د شپې بوختیا وه او دا کش تر سهاره غځېدی د هغو کسانو شمېر چې نسونه یې وږي ول، له سر ـ لاس او پښه ماتو سره برابر و له همدې امله کوچنی ټام یو بدمرغ موجود نه و که څه هم د دې ماشوم ژوند غریب او ستونزمن و. خو دی یې چندانې په کیسه کې نه و ژوند یې د آفال کورټ د اوسېدونکو ماشومانو په شان و

نو ځکه ټام وانګېرله چې د اوسېدو خوښه او غوره لار همدا ده او بس ټام پوهېدی چې هره شپه کور ته په تش لاس تلو سره یې لومړی پلار رټي. بیا یې وهي او وروسته یې هم ځشنه او وېروونکې نیا پر راغورځي او د ټولو نارامیو کسات ځنې اخلي. ټام پوهېدی. په دې هم ښه پوهېدی چې مور یې یوه مړۍ ډوډۍ له خپلې خولې سپموي او ده ته یې ساتي. په شپه کې یې د خزندې غوندې د بستر خوا ته ورځي او هغه مړۍ ورکوي چې څو ځله یې پلار پر دې کار نیولې او وهلې هم ده

خو هر څنګه چې وه پر ټام ژوند همداسې ښه تېرېدی. په تېره په اوړي کې چې تر نورو فصلونو غوره و ټام هماغسې په ګدایۍ بوخت و چې نس د مړ کېدو له وېرې ډك کړي دا چې د ګدایانو پر ضد ډېر سخت او کړاوجن قوانین اېښول سوي ول او نیول سوو فقیرانو ته سخته سزا ورکول کېده. ټام هم غوره ګڼله خپل زیات وخت د پلار آنډریو هغو کیسو ته په غوږ نیولو تېر کړي. چې هر ډول پېرۍ. ښاپېرۍ. دېب. غول. ماڼۍ، شهزادګۍ. شهزاده او درباري پکښې و

د ټام ټول فکر و ذکر له دغو کیسو څخه ډکېدی. آن تر دې، کله چې به د شپې د خونې په درنه تیاره کې پر څیري

بوریا د وهلو ټکولو او کار له امله ستړی ستومانه غځېدی. دردونه یې هېري ته سپارل او په افسانوي خوبونو کې ډوبېدی او د شهزادګانو د ژوند. شپه ناستو او له برمه ډکو ماڼیو په څېو کې یې ځان یوه خوشحاله خوب ته سپاری

د ټام په زړه کې داسې یوه هوس ځای نیولی و چې شپه و ورځ یې آرامی ته نه پرېښاوه. هغه دا چې یوه ورځ یو شهزاده پخپلو سترګو ووینې. یو ځل یې دا خبره له خپلو همزولانو سره شریکه کړه

خو د آفال کوړتې همزولانو دومره پر وخندل چې بېچاره خپل دغه هوس په زړه کې وواژه. بیا یې پر خوله رانه ووړ او هڅه یې کوله چې خپل زرین خوبونه نور چا ته ونه وایي

ټام ډېر خله د بوډا کشیش زاړه کتابونه لوستل او له هغه څخه یې تفسیر غوښت او په اړه یې بحث ورسره کاوه. خیالونه یې ورو ـ ورو غوړه. مطالعې یې بدلي سوې او یو بدلون پکښې راغی. خیالي اتلان یې دومره ښکلي. له برم او جلاله ډك ول چې د ده ښکاره ککړتیا او خیري والی یې بد وایسېد. ټام هم د هغوی د زړه لپاره هڅه وکړه خپلې جامې پاکې وساتي. خو لوبې او په ختو ککړېده یې همداسې روان وساتل او وروسته د دې پر ځای چې په ټایمز سیند کې د ساعتېري له امله ولامبي. د سیند د اوبو ارزښت ته یې پاملرنه وکړه او په دې هڅه کې سو چې د ځان د پرېولو او پاك ساتلو لپاره یې وکاروي

ټام تل چیپ سایډ ته څېرمه د میپول پر شاوخوا او بازارونو کې ځان ته یوه بوختیا او تفریح لټوله. خیني وخت به یې د لندن له نورو اوسېدونکو سره د دې وخت موندی چې د پوځیانو ننداره وکړي. یعني کله چې به یو بدبخت مشر پر وچه یا سیند کې د کښتی. په مرسته د لندن برج زندان ته لېږدول کېدی. د پوځیانو منظم حرکت د لیدو وړ و

ټام د اوړي په یوه ورځ بېچاره (آن سکیو) ولید چې له درېیو نورو کسانو سره یو ځای په سمیثفیلډ میدان کې ژوندی اور ته وغورځول سو. وروسته یې هم د هغه کشیش دوعا ته غوږ ونیو چې (آن سکیو) ته یې کوله. خو چنداني ارزښت یې ورنکړ. په همدې ډول د ټام ژوند د نوښت لوري ته روان و

ټــــام ورو ـ ورو دومــــره د شــــاهزادګانو د خیــــالي او حیرانوونکو افسانو تر اغېز لاندې سو چې په ناخبره توګه یې د هغوی د خوځښتونو او کړو وړو پېښې شروع کړې. خبرو اترو او کړو وړو یې درباري رنګ خپل کړ، دې کړنې ته یې ملګري هم حیران ول

په همزولو کې د ټام د کړو وړو او خبرو اترو وزن پر درنېدو و او لږ وروسته ټولو په درنه او تر ځان په لوړه سترګه ورته کتل. د ملګرو په اند یې. ټام تر دوی ډېر پوه دی، داسې خبري او کارونه کولای سي چې د دوی په وس نه دي او ډېر حیرانوونکی هم دی

په هرحال له ټام څخه ډېر هوښیار او پوه هلك جوړ سوی و. ورو ماشومانو یې د حرکتونو او خبرو کیسې خپلو پلرونو ته کولې. هر وخت چې به هم ورسره رغېدل د یوه غوره انسان، بېل او ښه شخصیت په سترګه یې ورته کتل. لویانو هم خپلې دننني ستونزې ورسره شریکولې. د هواري لار یې ورڅخه غوښته او ډېر خله به یې د ده پوهه، تدبیر او کارپوهنه ستایله. ټام له خپل کور پرته، د بل هر شناخته په اند د پوهې او خبرتیا ښه وه. خو خپلو والدینو ته هېڅ و. لږ وروسته، ټام یو لړ تشکیلات ترسره کړل او په درباري ژبه ځان ته یې تدارك ولټاوه. ښکاره ده چې د دې دربار شهریار هم پخپله سو. نږدې ملګري یې پاسداران، سرایداران، ندیمان، باور وړ او نږدې نجیبان او د سلطنتي کورنۍ ښځې سوې

هر سهار د شهزاده هر کلی په هماغو تشریفاتو او دود ترسره کېدی چې په افسانوي کتابونو کې یې لوستلي ول لومړی یې خپلې توکیزي هیوادنۍ او لښکري چارې په سلطنتي شورا کې تر بحث او سلا مشورې لاندې نیولې او تر دې ناستې وروسته یې د خپل خیالي پوځ. سمندري ځواکونو او قوماندانانو لپاره امرونه صادرول. وروسته په هماغه څیرو جامو کې په فقر پسې روانېدی او یوه ګوله ډوډۍ یې پیدا کوله. ژووله او په پرله پسې توګه یې په کور کې وهل ټکول خوړل. وروسته هم پر یوه څیري بوریا اوږد غځېدی او پخپلو لیرو خوړو خیالونو کې ډوبېدی

د یوه شهزاده د لیدو تنده یې هره ورځ ډېرېده، تر دې چې دغې هیلې یې پر ټولو هیلو سیوری وغوړاوه او لږ وروسته یې یوازنۍ هیله سوه



د جون میاشتې په یوه ورځ. چې ټام کاټتې هماغسې په خپله ورځنۍ دنده بوخت و ـ یعني فقر یې کاوه ـ د مین سینګ لین او لیټل ایسټ چیپ د شاوخوا ویټرینونو تر شا یې په لڅو پښو او یخنۍ وهلي بدن ها خوا دې خوا منډه او رامنډه کړه او د مغازو خوندورو خوراکونو ته یې وکتل. ده دغه ښکلې خوراکونه د پرښتو لپاره وبلل. دغه احساس هغه مهال په کې غځوني وکړې چې د خوراکونو بوی یې پر سپږمو ور

ځکه تر اوسه يې د هغوی د ښکلو بخت نه و موندلی

يخ و او نرۍ باران اورېدی. چاپېريال په بشپړه توګه غمجن او ستړي کوونکی و. هوا ډېره نيولې وه او ټام چې د شپې کور ته لاړ، دومره ستړی، لوند او وږی و چې پلار او نيا يې د خپل زړه سوي مخه ونسوای نيولای. خو بيا يې هم وهل ټکول وخوړل او وروسته هم د بيدېدو امر پر وسو.

ټام څه مهال د درد، لوږې او هغو نارو سورو له امله ويښ پاته سو چې تل به يې په کور کې روانې وې، خو بيا زرينو او افسانوي خوبونو خپلې نړۍ ته يووړ او د هغو جواهرپوښو شهزادګانو د رکاب په دنده کې چې په له برمه ډکو مانيو کې اوسېدل هاخوا دېخوا لاړ او د هغو خادمانو په ننداره سو چې د شهزادګانو په وړاندې يې د تعظيم او درنښت سرونه ټيټول. بيا له همدغو خيالونو سره بيده سو او په خوب کې يې وليدل چې دی هم شهزاده سوی دی

د ټام د دربار د تنګ راتګ عظمت ټوله شپه تر سهاره روان و. هغه د لومړي درجه نجيبانو او ورسره بيبيانو په منځ کې روان و. ښکلي عطرونه يې بويول. په زړه پوري سندرې يې اورېدې. شراب يې څښل. په وړاندې يې کړېدونکو درباريانو ته مسل او خيني وختونه يې د رضايت په دود سر ورته خماوه

سهار چې له خوبه پاڅېد، خپل فقير چاپېريال ته يې وکتل، د خپل شاوخوا خېرې ککړتيا په ليدو يې د شپې د خوبونو ټول خوندونه هېر او پر ځای يې د زړه کور ته يوه وژونکې درد منده کړه. مات زړه يې وژړل او تر سترګو يې د اوښکو دانې وڅڅېدې

(۳)

**له شهزاده سره د ټام ليدنه**

ټام په وږي نس له خوبه راويښ سو او هماغسې له کوره ووت. خو يو خل بيا د تېرې شپې يادونو، خيالونو او خوبونو په مخه کړ. هغه د آوارو په شان په ښار کې سرګردان ايستو دورې کېدی. هيڅ نه پوهېدی چېرې ځي او موخه يې څه ده؟ د پر تېرېدونکو شيانو چندانې په کيسه کې هم نه و. خينو ډکې ورسره وهلې. خينو ښکنځل ورته کول. خو دې هر څه پر دغه اند ښېمن ماشوم کوم اغېز نه کاوه

لږ وروسته ټام په ټمپل بار کې و. دا يې تر ننه تر ټولو لوی مهلې واټن و. ودرېد او د لږ وخت لپاره هر لوري ته خير سو وسته يې خان خيالونو ته وسپارى، وزرونه يې وکړل او پر لندن والووت. هغه ورځ سترګه نوره هغه تنګه تروشه لاړ نه وه چې کلي يې له ښار سره نښلاوه. بلکې د هغه ځای په ډېرو ارزښتناکو واټونو کې راتله چې ښلابېلې ودانۍ پکښې ولاړې وې. يوه لوري ته سره ښښتي استوګنځايونه جوړ سوي ول او بلې خوا ته سره ښېلي خو دنګې او ستړې ودانۍ ولاړې وې. په دغو ودانيو کې چې سيند ته يې هم لاړ لرله، د ښار زورور د ژوند په يوه پراخه او شنه فضا کې اوسېدل

يادې سوي ودانۍ په ډېرو او پخو خښتو پوښل سوې او بدې ښکارېدې. ټام چرنيګ کلي ته ورسېد. تر هغه ښکلي صليب لاندې کښېناست چې يوه تېر سوي ناکام پاچا جوړ کړی و. وروسته پر يوه ښايسته او تشه لاړ وخوځېد. د کارډينال تر برميال قصر تېر او د وسټ مينستر مشهورې ښکلې مانۍ لوري ته وړاندې لاړ. په حيرانتيا يې هغو ودانيو ته وکتل چې لوړې، برجورې او وېرونکې ښکارېدې. د مانۍ ډېرينو دروازو، طلايي سيخانو او د سترو ډبرينو زمريو مجسمو پام اړاوه

آيا همدا د ټام هغه هيلې وې چې بايد ترلاسه کړې يې وای؟ له شکه پرته هغه د پاچا مانۍ وه. مګر ټام دغه مهال د يوه شهزاده ـ يوه ربښتيني شهزاده ـ د ليدلو هيله لرلای سوای؟ که خدای غوښتای څومره ښه و. د هغې طلايي دروازې په شاوخوا کې. يوه داسې مجسمه ولاړه وه چې له سره تر پښو له خلاندې او ښوېې اوسپنې او پولادو څخه جوړه سوې وه. لږ ليرې څو کليوال او ښاريان دې ته په تمه ول چې ښايي د سلطنتي کورنۍ يو غړی له نږدې ووينې

برميالي او جلالي بګيانې چې د ښو جامو څښتنان پکښې ناست او نوکرانو ښلابېل پيغامونه خنې وړل ـ راوړل. پرله پسې تلې او راتلې. ټام پخپلو خيرو ـ ويرو جامو کې ورو ـ ورو ورنږدې کېدی. وروسته په وېره او لړزه د ساتونکي تر شا تېر او په داسې حال کې چې زړه يې سخت درېدی. ناڅاپه يې د دروازې له طلايي سيخانو څخه پر داسې شي سترګې ولګېدې چې نږدې و له خوښۍ څخه چيغې کړي

د سيخانو ها پلو ته، يو متهور، غنمرنګه او ښکلی هلك په پرانيستې هوا کې لوبېدی او جامې يې له دومره ښکلو ورېښمو او اطلسو جوړې سوې وې چې په رڼا کې ځليل کېدې

يوه وړه او جواهرنښانه توره يې پر بغل خړېده. د ښکلو سرو پوندو لړونکې لنډې موزې يې په پښو وې او يوه ارغواني خولۍ يې هم پر سر وه چې څو دانې جګې او ښايستې بڼکې او

یو پنډ قیمتي جواهر یې د خولۍ په منځ کې ټینګ سوی و شاوخوا یې څو تنه درباریان ولاړ ول چې ملازمان یې ایسېدل تومورۍ ماشوم لـه ورایـه شـهزاده ـ یـو ربښتینی شـهزاده ـ ښکارېدی او په دې کې هېڅ شك هم نه و داسې ښکارېده چې د ټام دوعا آخر قبوله سوه

د ټام نفس تنګي کېده. له ډېر هیجان او اضطرابه یې د زړه دربی ډېر سوی و، سترګې یې لـه حیرانتیا او تعجبـه خلاصې پاته وې همدغه شېبه یې ټولې هیلې په یوه ستره ارزو بدلې سوې کاشکې کېدای سوای چې یو څه خو نور هم شهزاده ته ورنژدې سوی وای او له نژدې یې یوه بشپړه ننداره کړې وای

ټام خپلې کړنې او چار چاپېر ته له پاملرنې پرته، خپل مخ د دروازې په طلایي سیخانو پورې ونښلاوه شېبه وروسته یو ساتونکی راوړاندې سو او دی یې پـه درد د شـله (اړمـو) او دوړنو کلیوالو او کوڅه ډبو ښاریانو په ټولۍ کې خوشې کړ او په خښمناك ږغ یې ورته وویل

ـ بې سر و پښو فقیره! دومره د حاله مه وزه!

خلګو وخندل. خو کوچنی شهزاده په چټکۍ سره د لویې دروازې خوا تـه راوځغاست او پـه حیرانـو او لـه خښـمه ډکو سترګو یې ساتونکي ته په لوړ آواز وویل

ـ ولې له دې بېچاره ماشوم سره داسې چلند کوې؟ ولې دې زما د پلار د رعیت یو بې برخې غړی دومره ورټی؟ دروازه خلاصه کړه او دننه یې راپرېږده

کاشکې تاسو هم هورې وای او لیدلای مو چې څنګه زرګونو وګړو د دې خبرې په اورېدو له سرونو خولۍ پورته او د شهزاده درنښت یې پر ځای کړ کاشکې تاسو هم هورې وای او لیدلای مو چې د وګړو له منځه زوړ اوچت سو او ټولو په یوه آواز چیغه کړه

د شهریار ویلز عمر دې اوږد وي!

سرتېرو پخپلو نېزو او تبرزینانو درنښت پر ځای کړ. د ماڼۍ دروازه خلاصه سوه او د فقیرانو د هیواد شهزاده خپل لاس په داسې حال کې د برکتناك او شتمن هیواد شهزاده ته اوږد او سلام یې وکړ چې له خپلو ځیرو او ککړو جامو سره د ننوتو پر حال و

اډوارډ ټوډور وویل

ـ ستړی او وږی ښکارې. لکه چې بد چلند یې درسره کړی دی په ما پسې راځه!

شپږو تنو ساتونکو په چټکۍ ځانونه ټام ته ورسول ـ ګوره چې ولې ـ ښایي د شهزاده د تلو مخه یې نیوله. خو د شهزاده په اشاره ټول پر خپلو ځایونو مېخ سول اډوارډ هغه خپلې ښکلې ماڼۍ ته دننه کړ ټام ته یې د غذا د راوړلو امر وکړ. هغه غذا چې بېچاره ټام یې په کتابونو کې صفت لوستی و

شهزاده په هوښیار او شاهانه انداز ملازمان خکه دباندې وایستل چې خوارکی مېلمه یې لـه سته والي نارام نسي وروسته خپله د ټام تر څنګ کښېناست، ټام لاهماغسې ډوډۍ خوړله چې شهزاده خبرې پیل کړې

ـ ښه. هلکه نوم دې څه دی؟

ټام خواب ورکړ

ـ ټام کانټي ځار، آیا ستاسو په اند سم دی؟

ـ عجیب نوم دی، ډېر ښه کور دې چیرې دی؟

ـ د ښار پـه آفـال کـورټ سـیمه کـې، د بودینـګ لـین دروازې دباندې. ځار!

ـ آفال کورټ؟ دا نوم هم عجیب دی! ښه کورنۍ هم لرې؟

ـ هو ځار! مور و پلار لرم ځار نیا هم لرم چې ډېره نه ده راباندې ګرانه اوس چې مې هم پـه پټـه وغندلـه. ښایي خدای مې وبخښي دوې غبرګولې خویندې هم لرم. تن او بت

ـ ښه ټامه. نیا دې لکه چې چنداني درسره سمه نه ده، همداسې نه ده؟

ـ ځار، نه یوازې زما سره، بلکې له هېچا سره سمه نه ده زړه یې د ډبرې په شان دی شپه و ورځ یې کار د وګړو ځورونه ده

ـ تا هم ځوروي؟

ـ هو ځار. پرته له هغو شېبو چې ویده یا بوختـه او یا هم مسته وي خو ماڼې چې راویښه او یا یې نشه له سره والوزي، ما وهي او ټکوي

د شهزاده سترګو ته خښم منډه کړه او ویې ویل

ـ څنګه؟ وهي دې؟

ـ هو ځار. وهي مې!

ـ څه ظالمه ده! وهي دې! تا کمزوری او ډنګر وهي! ښه ښه... همدا نن آمر کوم چې تر لمر لوېدو وړاندې یې په لندن کلا کې بندي کړي زما تاجور پلار...

ټام یې خبرې ورغوځې کړې

ـ ځار... ځار... تاسو لکه چې نه یاست خبر چې هغه څومره ناوړه او ککړه ښځه ده... لندن کلا خو د محترمو او درنو خلګو زندان دی نه د هغې په شان.

ـ ها... سمه ده... دې ته مې فکر نه و. زه به د هغې؛

په اړه فکر وکړم ښه پلار دې درسره سم دی؟
ـ نه خار. هغه مې هم له ټيا سره کوم توپير نلري
ـ ټول پلرونه همداسې دي زما پلار هم آن يوه ناڅکه غونډې زغم نلري کله چې لاس اوچتوي، وهل کوي او لاس يې درونډ هم دی
ـ خو زه يې هيڅکله وهلی نه يم مگر کله ـ کله د ژبې زخم راکوي
ـ ښه مور دې درسره څنگه ده؟
ـ مور مې سمه ده خار. هيڅکله مې نه خوروي ناراموي مې نه. تن او بت هم په دې اړه زما د مور په شان دي
ـ خويندې دې څو کلنې دي؟
ـ تاسو ته به ووايم چې پنځلس کلنې
ـ مگر زما خور شهزادگۍ اليزابت څوارلس کلنه ده د تره لور مې شهزادگۍ جان گرې زما همزولې ده ډېره ښکلې، تازه او ژوندۍ ده خو يوه بله خور مې شهزادگۍ (مري) نيولې او غمجنه ښکاري، مگر ښه خير. آيا ستا خويندې له دې امله د خدمتگارانو د خندا مخنيوی کوي، چې خندا ئې اروا ککړوي؟
ـ خويندې خدمتگاران؟ تاسو فکر کوئ خويندې مې خدمتگاران لري؟
کوچني شهزاده ټام ته لږ په غور وکتل او ويې ويل
ـ هو ولې. خدمتگاران ونلري؟نو د شپې څوک جامې وراغوندي؟ سهار څنگه له خوبه ويښېږي؟ څوک د سهار جامې وراغوندي؟
ـ خار هيڅوک. مگر تاسو فکر کوئ چې هغوی کمېس خنې کاږي؟ او حيوانانو غونډې ويديږي؟
ـ د خوب کمېس آيا هغوی يوازې يو کميس لري؟
ـ هې ـ هې خار ولې، بايد دوه يا څو کميسه ولري؟ هره يوه خو دوه بدنه نلري چې بېل ـ بېل کميس ولري
ـ رښتيا چې عجيبه ده! مگر ما نه غوښتل ټوکې وکړم او پسخند درووهم ستا هره خور به ژر تر ژره زما په آمر څو ـ څو جوړې جامې او خدمتگاران ولري او دا هر څه به زما خزانه دار سمبال کړي تا ته هم زما څخه د مننې هيڅ اړتيا نسته. خکه دا کومه خبره نه ده او هېڅ ارزښت نلري. ته هم ډېره توده و خوږه ژبه لرې، درس دې ويلی؟
ـ خار زه خپله نه پوهېږم چې لوستی يم که نالوستی د پلار آندريو په نوم يو کشيش پېژنم، هغه د خپلې پېرزوينې پر بنسټ د کتاب له مخې درس راوښود
ـ لاتيني ژبه دې زده ده؟
ـ زما په اند يو څه به مې زده وي!
ـ خو هڅه وکړه چې زده يې کړې لومړی سخته وي مگر يوناني ژبه تر لاتيني مشکله ده فکر کوم همدا دوې او په ټوليزه توگه د نړۍ ټولې ژبې زما خور شهزادگۍ اليزابت او تره لور ته مې سختې نه دي کاشکې دې د دوی د دوو لاتيني او يوناني خبرو ته غوږ نيولای سوای ښه، اوس د آفال کورټ سيمې په اړه راته ووايه چې ښه دربانډې لگېږي که نه؟
ـ هو خار، ستاسو خای يې تش، واقعاً بد نه رابانډې لگېږي، مگر پرته د لوږې له مهاله هورې تياتري ننداري، د شپې لوبو خېمې او ښادي بازۍ سته دا ښادياني (بېزوگانې) هم څومره عجيب و غريب موجودات دي څومره ښکلې جامې وراغوندي! نوري داسې ننداري هم سته چې د يوه و بل د وژنې هڅه پکښې کيږي دا ننداري هم خورا ليدو وړ دي د ورتلو ټکټ يې نيم پنی دی مگر ما ته د هغه يوه پنې پيدا کول هم گرا ن دي
ـ ښه کيسه کوه!
ـ موږ د آفال کورټ هلکان کله ـ کله په لرگيو او گرزونو سره وهو او د مکتبي هلکانو په شان جنگ سره کوو
د کوچني شهزاده سترگې وځلېدې او ويې ويل
ـ واه، واه! دا لوبې مې هم خوښېږي څومره په زړه پورې. کيسه کوه!
ـ خار.. دوه تنه د منډې سيالي سره کوو او تر هغو ځغلو چې گړندی راپکښې معلوم سي
ـ ښه، دا لوبه مې هم خوښه ده، کيسه کوه!
ـ خار.. د اوړي په موسمونو کې په ويالو او سيندونو کې غوټې او لامبو وهو او هر يو په دې هڅه کې وي چې خپل نژدې ملگری په اوبو ومنډي او مات يې کړي لامبو وهو، ډېبونه وهو او حملې وهو...
ـ واه، واه! کاشکې مې د پلار د دا ټول قلمرو په بدله کې د دغو لوبو خوند څکلای سوای ښه، هيله کوم کيسه کوه...
ـ خار... د ميپول د شاوخوا په چيپ سايډ کې سره وهو، سندرې وايو او نڅېږو په ريگو کې لوبې کوو او هر چا که خپل نژدې ملگری په ريگو کې پټ کړ، بريالی دی خينې وختونه هم له گل څخه خوږه ډوډۍ پخوو په رښتيا چې څومره پاسته گلونه يې دي په ټوله نړۍ کې سيال نلري، بده ورځ مه وينې، پر گلونو لغړو او ساعتېرې کوو
ـ واه، واه! بس کړه! څومره عالي او خوبولي! کاشکې مې

يو خل کولای سوای چې ستا جامې واغوندم او پر گلونو او خاورو ولغړم. خو په دې شرط چې څوك مې ونه پېژني او د لوبو مخه مې ونه نيسي. که داسې کېدای سوای زه د خپل تخت او تاج سپارلو ته تيارېدم.

ـ ای گران شهزاده. کاشکي ما هم يوازې يو خل ستا جامې اغوستلای سوای.

ـ موخه دې څه ده؟ آيا زما جامې دې خوښې دي؟ ښه. که داسې ده نو راسه جامې سره بدلې کړو. ته دې خپلې څيرې جامې راوکاږه او زما ښکلې او برمیالي جامې واغونده. ډېر ښه وخت دی او هيڅ پروا هم نلري. هله ژر کوه. د کوم بل چا تر راتگ او خنډېدو وړاندې بيرته خپلې جامې سره بدلوو.

شېبې وروسته. واړه شهزاده ويلز د ټام خيرنې او څيرې جامې واغوستې او د خوارانو د هيواد کوچنی شهزاده هم د وليعهد برميالي جامې.

دواړه څنگ پر څنگ هنداري ته ودرېدل. خو يوه عجيبه پېښه وسوه: ښېځي لکه هيڅ پېښه چې نه وي سوې. دواړه له يو بله سره وکتل. وروسته يې هنداري ته وکتل. بيا يې له يو بله سره وکتل. دا مهال شهزاده وويل:

ـ ډېر ښه. زه مې خپل نظر وايم. زما په اند ستا د سر وېښتان. د سترگو رنگ. آواز. کړه وړه. قد او څېره زما غوندي دي. که دواړه لڅ ودرېږو هيڅوك به ونسي ويلای چې د انگلستان وليعهد کوم يو دی. اوس چې زه ستا په جامو کې يم. کولای سم ستا هغه حال حس کړم چې ته ساتونکي وهلې. آيا ستا لاس زخمي سوی نه دی؟

ـ هو خار. خو دومره نه دی. آخر ته پوهېږې چې هغه خوار ساتونکی

شهزاده يې خبرې ورغوڅې کړې. ښسه يې پر ځمکه ووهوله او په خشم يې وويل:

ـ ښه. بس کړه! دا کار يې ډېر ناوړه او ظالمانه و. که پاچا ... پرېږده يې ... زما تر بيرته راتلو پورې ته د يوه گام په اندازه ښورېدو حق نلرې. دا يو امر دی او بايد پر ځای سي.

شهزاده د سترگو په رپ کې يو د ملي ارزښت لرونکی څيز له مېزه اوچت او يو ځای يې خوندي کړ. ځپله په عصبي څېره له دروازې ووت او په څېرو جامو د ماڼۍ غولي ته په منډه سو لړ. وروسته د ماڼۍ ستري دروازې ته ورسېد. د هغې طلايي سيخان يې ونيول. ويې ښورول او چيغه يې کړه.

ـ اې هلکه. دروازه پرانيزه!

هماغه سرتېري چې له ټام سره يې ناوړه چلند کړی و. په چټکۍ اطاعت وکړ او شهزاده په داسې حال کې چې په غرور او شاهانه ادا له نيمې پرانيستې دروازې څخه وتی. ناببره د ساتونکي له خوا يوه داسې تېنگه څپېړه پر غوږ ووهل سو چې د واټ پر منځ پرېووت. وروسته ساتونکي وويل:

ـ و دي ليده فقيره؟! دا يې هم ستا له امله د شهزاده له خوا زما د رټنې بدله.

د ماڼۍ ددروازې تر شا ولاړو وزگارو وگړو وخندل. شهزاده ځان له خټو څخه راواېست او په خښم د ساتونکي خوا ته ورغی او چيغه يې کړه.

ـ زه هماغه د انگلستان وليعهد شهزاده ويلز يم. هغه د سپېڅلي وجود څښتن او ته به پر ما د لاس اوچتولو له امله په دار وځړول سې.

سرتېري خپل تبرزين د درنښت په دود اوچت کړ او په ټوکيز انداز يې وويل:

ـ زه د وليعهد درانه حضور ته ادب وړاندې کوم.

وروسته پر شهزاده په قهر سو.

ـ خه ورك سه مردارخوره!

همدغه شېبه د وزگارانو او فقيرانو ډله پر شهزاده راوڅرخېده، هغه يې واټ ته کش کړ او ناري يې کړې.

ـ دغه وليعهد شهزاده ته لار ورکړئ. شهزاده وليعهد ته لار خلاصه کړئ.

نور بيا



## دنده او کار

* انسان د خپل کار و زيار زوی دی.
* کار د ژوندانه مالگه ده.
* دنده پېژندنه هغه سيميت دي چې د انسان اخلاقي ودانۍ رنگېدو ته نه پرېږدي.
* تر وزگاره بېگار ښه دی.
* چې هره ورځ لاز بدلوې هيڅکله به ځای ته ونه رسېږې.
* په هر کار کې فکر وکړه که پای يې ښه درته ښکاره سو کوه يې، که نه ډډه ترې وکړه.
* ناپوه د هر چا په کار کې گوتې وهي.
* کار اسان دی. پيل يې گران.
* آس خپلې وريښې خپله ډېروي.
* چې د ملا تير يې کلك وي لويه دنده به ونه مومي.
* که زه يو ځای ته رسېدلی يم. نو خپل کار او هڅې رسولی يم.
* دنده هغه څه ده چې له نورو نه يې د ټر سره کولو هيله لرو.




## اداره

۞ یکشنبه د لړم ۲۹ مه :

د کوچنیانو د حقوقو ساتني او پیوستون نړۍ واله ورځ د بشر د حقوقو د سیمه ایز دفتر لخوا د یو شمېر ښوونځیو د ښوونکو او ښځینه زده کړیانو په پراخ ګډون د زرغونې انا لیسې د غونډو په لویه خونه کې په داسې حال کې ولمانځل سوه چې غونډې ته د موضوع په اړه د بشر د حقوقو د خپلواک سیمه ایز دفتر رئیس انجنیر عبدالقادر نورزي، د پوهنې رئیس حیات الله رفیقي او د یو شمېر ښوونځیو مشرانو او ښوونکو خبري وکړې .

۞ دوشنبه د لړم ۳۰ مه :

د ملي پوستون د ۹۵۷ زره افغانیو په ارزښ د ژړۍ ولسوالۍ د میانجوی په کلي کې د بیا رغوني یوه پروژه چې په هغه کې به پلونه او استنادي دېوال شامل وي پرانستل سوه .

۞ دوشنبه د لړم ۳۰ مه :

د شګې ولسوالۍ د عبدالله زو او میل په کلیو کښې د هوف مؤسسې له لوري د (۹۰) زره امریکایي ډالرو په ارزښ دوه جوړ سوي ښوونځي د پوهنې ریاست د استازي له لخوا پرانستل سوه .

۞ ۴ شنبه د لېندۍ دوهمه :

د پوهنې رئیس حیات الله رفیقي څرګنده کړه چې همدا اوس په ۳۳۵ ښوونځو کې (۱۴۰۰۰۰) زده کړیان چې (۲۴۰۰۰) زره یې نجوني دي په لوست بوخت دي او د (۳۴۴۲) تنو ښوونکو لخوا یې د لوست چاري مخته وړل کېږي .

۞ ۴ شنبه د لېندۍ ۲ مه :

د میوند ولسوال محمدنبي اداري وویل :

د میوند ولسوالۍ په اړوندو سیمو کښې د (۵۰) جریبو په پراخوالي د کوکنارو کښتونه له منځه یووړل سوه . اداري وویل چې دا بهیر به وخت پر وخت د ټولو کښتونو تر ویجاړولو پوري وغځېږي .

۞ ۵ شنبه د لېندۍ ۳ یمه :

د پنجوايي ولسوالۍ د شمس الدین کاکړ په لیسه کې د یوې پراخې غونډې په ترڅ کې په داسې حالي کې چې یو شمېر مخور سپین ږیري، مشران، د کلیو د پراختیا ریاست او هیئات مؤسسې مسئولینو هم شتون درلود د کندهار والي ښاغلي اسدالله خالد لخوا د ملي پیوستون د چارو پیلېده پرانستل سوه .

۞ ۵ شنبه د لېندۍ ۳ یمه :

د ولایت مقام د غونډو په خونه کښې د ولسوالانو او امنیه قومندانانو غونډه د کندهار والي اسدالله خالد په مشرتابه سره جوړه او د کوکنارو د کښت د مخنیوي پر لارو چارو او د هغې پر پلي کېدو په ټینګه پرېکړې وسوې او د ګډونوالو څخه وغوښتل سوه چې په دې لاره کښې کوټلي ګامونه اوچت کړي .

۞ شنبه د لېندۍ ۵ مه :

د اتحاد په نوم د جراحي عمومي روغتون د حاجي

عبدالظاهر سوداګر په پانګه سره د ولایت مقام په استازیتوب د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی رئیس عبدالمجید بابي له لوري په داسي حال کښي چي د عامي روغتیا رئیس ډاکټر عبدالقیوم پخلا او د ولایت مقام مشاور حاجي محمدانس هم شتون درلود د پټي په پرې کولو سره پرانستل سو .

چي د پرانستو په دود کښي ښاغلو بابي، ډاکټر پخلا، حاجي عبدالظاهر په دې اړه د خوښي په څرګندولو سره څه نوري اړونده څرګندوني هم وړاندي کړې، دغه روغتون په کابل دروازه کښي پروت او (۳۴) بستره لري چي د جراحي، اورتوپیدي، غوږونو، ستوني، ستر ګو، نسایي، ولادي، او داخله څانګي لري او (۲۴) ګړیه به د رنځورانو پر مخ پرانستي وي .

❁ یکشنبه د لړندي ۶ مه :

د سپین بولدک ولسوالي کي د دیني عالمانو په یوه لویه غونډه کښي چي د کندهار د علماو شورا رئیس مولوي غلام محمد غریب هم شتون درلود د اسلامي دولت په وړاندي د بدنه یو ناروا چاره وبلل او هغه یې په دیني او مذهبي څرګندونو سره وغندل .

❁ یکشنبه د لړندي ۶ مه :

کندهار والي اسدالله خالد وویل : احمدشاهي پارک به بیرته ورغول سي، او هغه به د سردار مددخان د څلور لاري څخه د حضرت جي بابا تر سیمي پوري وي او (۱۵) میلیونه افغانۍ به وربانديي ولګول سي .

❁ دوشنبه د لړندي ۷ مه :

د ائتلافي ځواکونو قومندان ستر جنرال جنس کیمیا په هوایي ډګر کي د یوې مطبوعاتي غونډې په ترڅ کي څرګنده کړه چي د شاه ولیکوټ د ګنبد په سیمه کي د (۲) تنو مخالفینو د جسدونو د سوځلو له امله به د همدې ځواکونو دوو تنو عسکرو ته سزا ورکړه سي .

جنرال کیمیا دا سوځل د خپلو سرتېرو له لوري ومنل او دا یې هم وویل چي دغو سرتېرو د جینوا د قانون د (۱۷)مي مادې سره سم کړنه کړېده څکه چي په جګړه ایز وحالاتو کي د مړي جسد ته تر (۲۴) ګړیو زیات په ډګر کي د پاته کېدو اجازه څکه نسته چي روغتیایي ستونزي ځني راولاړ یږي .

دلته چي دا سرتېري د افغانانو له دود څخه ناخبره وه هغوی ته سزالیک ورکړه سوی او نه سي کولای عسکري وړتیاوي او یا د ترفیع پر بنسټ پرمختګ وکړای سي .

❁ ۳ شنبه د لړندي ۸ مه

د قبایلو ښوونځي د لوست بهیر او هلته د نظم او اړوندو چارو بهیر د پوهني د رئیس حیات الله رفیقي لخوا د یوې غونډې په اوږدو کښي ښه وارزول سو .

❁ ۴ شنبه د لړندي ۹ مه

د ژړې په ولسوالي کي د کوکنارو (۵۰) جریبه کښتونه له منځه یووړل سوه او ورسره جوخت د شګي ولسوالي مشرانو، دیني عالمانو، او یو شمېر کروندګرو ژمنه وکړه چي کوکنار به نه کري .

❁ ۴ شنبه د لړندي ۹ مه :

د قټبال د لوبو ژمني سیالي د بدني روزني د آمریت په نوښت پیل سوې په دې سیالیو کښي به (۵۴) لوبډلي ګډون وکړي چي (۱۲) یې لومړۍ لوبډلي او (۴۲) یې دوهمي لوبډلي دي .

❁ ۵ شنبه د لړندي ۱۰ مه :

د ارواښاد علامه پوهاند عبدالشکور رشاد لومړی تلین د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی ریاست په نوښت د منډیګک په ماڼۍ کښي د یوې پراخي غونډې په بهیر کښي ولمانځل سو .

کنفرانس د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی رئیس عبدالمجید بابي په وینا سره پرانستل سو، چي د کنفرانس نوري چاري هم د دوی تر ریاست لاندي په داسي حال کښي وغځېدې چي تر دوی وروسته د ولایت مقام مرستیال ښاغلي غلام جیلاني همایون وینا واورول او د غونډې رابلل یې وستایل او ښاغلي بابي ته یې کورودانۍ وواېه . تر ښاغلي همایون وروسته ښاغلي شېرشاه رشاد د علامه بابا د ژوند په اړه وړغږېد هغوی هم د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی د ریاست او په ځانګړې توګه د ښاغلي بابي څخه له دې امله مننه وکړه چي په همدې کنفرانس کښي یې ډېرې ستړیاوي ګاللي دي .

د کنفرانس دوهمه برخه ویرنو ته بېله سوې وه چي ښاغلو استاد پنهان، کوکو رشاد، استاد حیات الله رفیقي، د میدان وردګو د کلتوري ټولني مشر محمدهاشم شېراني، عبدالمجید بابي او د میرویس نیکه د لېسې زده کوونکي احمدشاه امین خپلي جوړې سوې ویرني واورولې .

د کنفرانس دریمه برخه د علمي مقالو او اورولو ته بېله سوې وه چي د جمهور رئیس په پیغام سره چي د ولایت مقام د اداري رئیس ښاغلي غلام فاروق فرهمند لخوا ولوستل سو پیل سو .

غونډې ته د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی، پوهنتون، او پوهني ریاستونو څخه هم پیغامونه رارسېدلي وه . همدارنګه د خواځوري ادبي ټولني، په سویډن کښي د افغان کلتوري کمېټې، د احمدشاه بابا د علمي او کلتوري مرکز، او نورو فرهنګي ټولنو پیغامونه رارسېدلي وه .

د مقالو د برخي لومړۍ مقاله د کاناډا څخه د ښاغلي محمدمعصوم هوتک مقاله وه چي ښاغلي سعید لودین واورول . وروسته عبدالقدیم پتیال او عبدالاحمد محمدیار هم خپلي مقالي واورولې .

غونډه ښاغلي ډاکټر عبدالرازق پالوال ارزیابي کړه .

په پای کي د ښاغلي عبدالباقي پوپل لخوا د پر بکړه لیک د جرګه ګي په مشرتوب د غونډې پر بکړه لیک طرحه په (۷) مادو کي ولوست ، او څه زیاتوني هم پکښي ځای سوې .

وروسته د کنفرانس برخه والو په هغه هېلمستیا کي برخه واخیسته چي د کندهار والي اسدالله خالد لخوا ورته برابره سوې

وه .

تر ډوډۍ او لمونځونو وروسته برخوالو په اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی ریاست کې د همدې ریاست په نوښت د علامه رشاد بابا د جامو او عکسونو د لوی او بېساري نندارتون څخه لیدنه وکړه او بیا د علامه رشاد بابا مزار ته ولاړه ، د ګلونو د ګېډیو تر ایښودلو وروسته یې د هغوی لوړ فرهنګي مقام په یوه په زړه پوري مشاعره وستایه . او و سپېڅلي روح ته یې دوعاوي وسوې .

۵ شنبه د لېندۍ ۱۰ مه :

د ښځو په وړاندې د تاوتریخوالي د منځه وړلو په ویلاړ په مېرمنو ټولنه کښې غونډه رابلل سوې وه چې کندهار والي اسدالله خالد هم پکښې ګډون درلود .

غونډې ته د مېرمنو ټولنې رئیسې صفیه عمه جانې تروینا وروسته د ښځو چارو د وزیرې مسعوده جلال پیغام واورول سو . ورپسې حیات الله رفیقي په دې اړه وینا واورول او بیا ښاغلي اسدالله خالد د خپلې وینا په ترڅ کښې وړاندیز وکړ چې په راتلونکې کښې په دې اړه پراخه غونډه راوبلل سي .

۵ شنبه د لېندۍ ۱۰ مه :

په کندهار کښې د هندوستان جنرل قونسل د ولایت مقام د مرستیال ښاغلي غلام جیلاني همایون سره په کتنه کښې د خپل هیواد د مرستو پر لا غځېدو ټینګار وکړ .

شنبه د لېندۍ ۱۲ مه :

دایډز د ناروغۍ د مخنیوي د لاروچارو د موندلو په اړه د عامې روغتیا ریاست لخوا د همدې ریاست د غونډو په خونه کښې په داسې حال کښې چې د میرویس روغتون ، د طب پوهنځي ، روغتیا پالانو ، استادانو او ډاکترانو برخه لرله د اکسفام او W.H.O په همغاړیتوب یوه غونډه رابلل سوې وه چې په اوږدو کښې یې ښاغلو ډاکټر عبدالقیوم پخلا ، ډاکټر پاینده محمد ارغنداوي ، ډاکټر شاه ولي پوپل ، ډاکټر عبدالواحد وثیق ، ډاکټر واحدي ، ډاکټر عبدالجبار ، ډاکټر شریفي او ډاکټر محمدداود فرهاد معلوماتي ویناوي واورولې .

شنبه د لېندۍ ۱۲ مه :

د سپین بولدک د صالح زو ، ساکزو ، پاییزو او حاجي بهادر په نهو کلیو او د عبدالرزاق د باوړي اړوند په (۳۳۸) جریبه مځکه کښې د کوکنارو کښتونه د امنیتي ډلو لخوا له منځه یووړل سوه .

یکشنبه د لېندۍ ۱۳ مه :

د ولایت شورۍ په غونډه کښې د کرونده ګرو سره د مرستو او افغان بېسیم د کډونوالو ګیلې وڅېړل سوې . په غونډه کښې د اقتصاد ، کلیو پراختیا ، اوبو رسولو ، فواید عامې ریاستونو مسئولینو او د امریکا د متحده آیالاتو د نړۍ والي موسسې USAID استازو هم ګډون درلود . د همدې موسسې استازو څرګنده کړه چې د دوی د سروې له مخې به پر ۱۷۹۳۰ تنو کرونده ګرو باندې کرهنیزه توکي ووېشي ، چې له دې جملې څخه (۷۰) فیصده ښل سوي او پاته (۳۰) فیصده به یې هم ووېشل سي .

یکشنبه د لېندۍ ۱۳ مه :

د ډاپاګ جرګه ګۍ د ولایت مقام د مرستیال غلام جیلاني همایون په مشرۍ د ده د کار په کوټه کښې غونډه وکړه او د چارو د پرمختګ په ویلاړ یې پولړ پرېکړې وکړې .

۵ شنبه د لېندۍ ۱۷ مه :

د کندهار په امنیه قومندانۍ کښې د ښځینه پولیسو د خیر په صندوق ځانګه په داسې حال کښې چې امنیه قوماندان سمونوال عبدالمالک واحدي ، د مېرمنو ټولنې رئیسې صفیه عمه جانې او زیات شمېر مخورو او سپین ږیرو ښتون درلود پرانسته سوه څو د همدې ادارې د ښځینه پولیسو په روزنه او د ښځو په وړاندې د تاوتریخوالي په له منځه وړلو کښې ګټه ځنې پورته کړه سي .

صندوق ته تر اوسه د USPI او GTZ موسسو لخوا د مرستې ژمنه سوېده .

۵ شنبه د لېندۍ ۱۷ مه :

د عیدګاه په سیمه کښې ښخ سوی ماین د امنیې قوماندانۍ د پولیسو لخوا له منځه یوړل سوې او کندهار ښاریان یې د همدې اړه د وژنې او ټپي کېدنې څخه وژغورل .

شنبه د لېندۍ ۱۹ مه :

د وسله وال پوځ هغه منسوبان چې د ملکې کولو د بهیر سره یو ځای سوي دي (۱۸۰) تنو یې په هغه مسلکې زده کړو بوخت دي چې د UNOPS او وارا موسسو لخوا ورته برابرې سوې دي . هغوی ته د ورځې (۶) ډالره هم ورکول کېږي او تر (۶) میاشتو به ګډون والو ته د زده کړې دا بهیر غځېدلی وي .

یکشنبه د لېندۍ ۲۰ مه :

د ولایتي شورا غونډه د شورا د رئیس احمدولي کرزي په مشرۍ د نارنج په ماڼۍ کښې جوړه او د ښاروالۍ رواني چارې او ستونزې ورپکښې په داسې حال کښې وڅېړل سوې چې ښاروال زمری عثمان ، د څلورو بازارونو ، د واټونو د اساسي جوړولو ، د ښار او لښتیو د پاکوالي په اړه څرګندونې واورولې .

د خلکو پر هډیرو باندې د قبضو او کورونو د جوړولو د مخنیوي په اړه هم شورا هراړخیزه خبرې وکړې او اړوند مسئولین یې راتلونکې غونډې ته وربلل .

یکشنبه د لېندۍ ۲۰ مه :

د ژړۍ دښت له کډوالو پنډغالو څخه (۴۲) کورنۍ خپلو اصلي ټاټوبو ته ستنې سوې .

په دې پنډغالو کښې (۹۷۷۲) کورنۍ ژوند کوي چې شمېر یې (۴۸۵۵۶) تنو ته رسېږي او ټوله د هیواد د شمالي ولایتونو اوسېدونکې دي چې د وچکالیو او تېرو جګړو ایزو ناخوالو له مخې د خپلو مېنو راشړل سوي دي .

دغو کورنیو ته د څلورو میاشتو خوراکي توکو او د ستنېدو د لګښت مرسته د کډوالو چارو ریاست UNHCR او IOM لخوا ترسره کېږي .

د روان عیسوي کال د مې د میاشتې څخه تر اوسه (۷۱۷)

کورنی چې (۳۶۰۶) تنه کېږي خپلو مېنو ته ستانه سوي دي .

۞ یکشنبه د لېندۍ ۲۰ مه :

په کابل کښي د فرانسې لوی سفیر ریژسکور چې کندهار ته راغلی د کندهار ولايت د مقام مرستیال غلام جیلاني همایون سره په کتنه کښي څرگنده کړه چې د ده هیواد غواړي دلته (۱۳۰) بستریزه نسايي ولادي روغتون جوړ کړي او هم د پنجوایي د خلکو په غوښتنه هلته د اوبو ډنډ هم جوړ کړي .

نوموړي سفیر د میرویس روغتون او زاړه ملکي روغتون شاته د هغه ځایه هم لیدنه وکړه چې هغوی دغه روغتون ورباندې جوړوي، همدارنگه سفیر د ولایتي شورا د غړو سره هم په نارنج ماڼۍ کښي وکتل او د هغوی غوښتني يې واورولې .

۞ ۳ شنبه د لېندۍ ۲۲ مه

د کندهار په دولتي مطبعه کښي د چاپ يو بل ماشین هم د چاپ د چارو له پاره نن په ځانگړي مراسمو سره پکار پیل وکړ ، د دې امله د اطلاعاتو کلتور او گرځندوی ریاست په موزیم کښي یوه غونډه جوړه سوې وه او په پیل کښي د اطلاعاتو کلتور او گرځندوی رئیس عبدالمجید بابي د مطبوعاتو او چاپ چارو په اړه څرگندوني واورولې . وروسته د ولایت مرستیال غلام جیلاني همایون هم په دې اړه خبري وکړې . دغه ماشین د (۱۰) نیم میلیونو افغانیو په لگښت برابر سوی او په یوه گړي کي (۱۲) زره پاڼي چاپولای سي، وروسته به د رنگه چاپ له پاره کمره هم ور ته برابره سي .

۞ یکشنبه د لېندۍ ۲۰ مه

عید گاه دروازې ته څرمه په یوه ځانمرگي برید کښي درې تنه ساریان ټپیان او خپله برید کوونکی له منځه تللی دی . په ټپیانو کښي د یوه روغتیايي حالت د اند ېښني وړ بلل سوی دی . د برید کوونکي پېژندنه نه ده سوې، هغه غوښته چې د ائتلافي ځواکونو د کاروان سره په لگېدو خان والوزوي خو د یوې کراچۍ سره د ده د لگېدو له امله ائتلافي ځواکونو ته زیان نه دی اووښتی .

۞ یکشنبه د لېندۍ ۲۰ مه

د ولایتي شورا غونډه د شورا د مشر احمدولي کرزي په مشري د نارنج په ماڼۍ کښي جوړه سوه چې په هغه کښي کندهار ښاروال، امنیه قوماندان، اداري رئیس هم برخه اخیستې وه .

په غونډه کښي پر هدیرو د کورونو جوړول، د پاتاو پاکېدنه، او د ښووني او روزني ځنځه شکایتونه چې په ښځینه ښوونځیو کښي د اړتیا پر ته د باندنیانو په گډون غونډې جوړېږي وڅېړل سوه .

۞ ۲ شنبه د لېندۍ ۲۱ مه

یو تن وژونکي چې د موټرسایکلانو په پلورنځي کښي يې غوښتل چې د زابل اوسېدونکی حمیدالله د جلال زوی د ټوپنچې په ډزو ووژني ونیو، حمیدالله چې په لاس کي ویشتل سوی روغتیايي حالت يې د ډاډ وړ دی . تر اوسه څرگنده نه ده چې نوموړي دي حمیدالله نومی واژه .

۞ ۴ شنبه د لېندۍ ۲۳ مه :

د افغانانو د مدني ټولنې (ACS) له لوري د IWPR موسسې په همغاړيتوب د حکومتي او غیر حکومتي ښوونځیو د ښځینه مشرانو ښوونکو او يو شمېر زده کوونکو په گډون د (ښځه او ښوونه) تر سرلیک لاندې درې ورځنۍ کنفرانس جوړ سو او د مدني ټولني مسئولي رنگینې حمیدي، د ښځو د چارو رئیسې صفیه عمه جاني او يو شمېر نورو د ښځو د ښووني او روزني په اړه څرگندوني واورولې .

۞ ۳ شنبه د لېندۍ ۲۳ مه

د ولایت مرستیال غلام جیلاني همایون د کندهار ولایت د ټولو ولسوالیو ولسوالانو او امنیه قوماندانو سره په کتنه کښي د کوکنارو د کښتونو د له منځه وړلو له پاره پر یوه گډ کاري پلان هر اړخیزه خبري وکړې .

۞ ۳ شنبه د لېندۍ ۲۳ مه :

د بشري حقوقو د نړۍ والي علامیې کلیزه د بشر د حقوقو د خپلواک کمېسیون د جنوب لوېدیځ سمت د سیمه ایز دفتر لخوا په هغه غونډه کښي چې د دې دفتر د مسئول انجنیر عبدالقادر نورزي په وینا پرانستل سوه ولمانځل سوه .

۞ ۳ شنبه د لېندۍ ۲۳ مه :

د کندهار د علماو شورا د تبلیغاتو د ځانگي مسئول مولوي احمدشاه د شپې پر نهو بجو د کندهار جامع جومات کي د دوو تنو وسله والو له لوري د ټوپنچې په ډزو سره ووژل سو . مولوي احمدشاه د محمدقسیم زوی او د کندهار د دوهم سمت اوسېدونکی و، ۳۱ کاله يې دیني زده کړي په بېلابېلو مدرسو کښي سر ته رسولي وې .

۞ ۴ شنبه د لېندۍ ۲۴ مه :

دوو تنو قوماندانانو هر یوه حاجي محمود د ولي محمد زوی او خان آقا د جمعه خان زوی د جهاد د مهال څخه ورسره وسلې چې (۳) میله د دافع هوا دستگاوي، (۳) میله BM توغندی ویشتونکي دستگاوي، يو میل اگایز او دوه میله زیکویو، (۹) میله RPP ماشیندار، يو میل DP ماشیندار، يو میل RRG راکټ، يو میل (۶۰) ملي متري هاوان او يو میل پنځه ډزی توپک ورپکښې وه د ډایاگ مسئولینو ته پخپله خوښه سپارلي دي .

۞ ۵ شنبه د لېندۍ ۲۵ مه :

د بیا ودانولو د مرستو پر اغېزمنتیا د ولایت مقام د غونډو په لویه خونه کښي د دولتي ادارو مسئولینو، د ولایتي شورا غړو، د کاناډا سفیر، امنیه قوماندان او د بیا ودانولو د ځانگي د P R T د ډلي په گډون یوه غونډه د اداري رئیس غلام فاروق فرهمند په مشر تیا جوړه او د چارو د سمبالښت له پاره د ولایت بیا رغوني د ټیم څخه غوښتنه وسوه چې د بیا رغوني چاري دي د ولایت شورا او ولایت مقام سره په همغاړيتوب او مشوره تر سره سي په دې

اړه یو لړ نوري اغېزمني لاري چاري هم وڅېړل سوې او پر بکړي پر وسوې .

۞ ۵ شنبه د لېندۍ ۲۵ مه :

د شګي په ولسوالۍ کښي د ملي پيوستون پروژې په څلورو کليو کښي د يوې غونډي په ترڅ کښي چي د کليو د پراختيا رئيس انجنير احمدشاه پيرعلي يې مشري کوله په داسي حال کښي چي د هيئات د موسسې مشر عبدالباقي پوپل هم شتون درلود د (۲۸۹۹۹۶۵) افغانيو په ارزښت پرانستل سوې .

۞ شنبه د لېندۍ ۲۶ مه :

د ملي اردو په ليکو کښي په ځېله خوښه د خدمت د اوږدتيا په اړه د (۲۰۵) نمبر اتل قول اردو د سرتېرو او افسرانو غونډه د همدې اتل قول اردو د قومندان تورن جنرال رحمت اله روفي په وينا کښي د هغې قومندانۍ په انګړ کښي جوړه او ده د دغه ډول سرتېرو څخه چي د بيا خدمت له پاره يې تړونونه جوړ کړي ستاينه وسوه .

۞ يکشنبه د لېندۍ ۲۷ مه :

د ولايتي شورا غونډه د احمدولي کرزي په مشري د نارنج په ماڼۍ کښي جوړه سوه او د هډيرو د لاندي کولو د مخنيوي په اړه د شورا منشي په مشري د ښاروالۍ، امنيه قومندانۍ، حج او اوقافو او دولت د قضاياوو د څانګو د استازو په ګډون يو پلاوی وټاکل سو څو قبضه سوي سيمي په نښه کړي .

په غونډه کښي د کندهار د زاړه ښار او د احمدشاهي کلا ته د پر جدي زيانونه چي د تېرو کلونو په اوږدو کښي او لا هم اوس ور اووښتي او وراوړي د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی د رئيس عبدالمجيد بابي لخوا په بشپړ و معلوماتو سره وړاندي سوه. شورا غوښتنه وکړه چي د مقدسه اماکنو او تاريخي ابداتو يو لست دي د هغوی د خوندي توب له پاره شورى ته وړاندي سي .

۞ يکشنبه د لېندۍ ۲۷ مه :

په کندهار کښي د هند جنرال قونسل د ولايت د مرستيال ښاغلي همايون سره د دوی لخوا د ښورندام په سيمه کښي د ميوو د جوړ سوي ساتنځي د سپارلو او د دې ساتنځي له پاره د مسلکي کسانو د روزلو په اړه خبري وسوې چي په راتلونکي کښي به کرهڼي، مالداري او خوراکي توکو د وزير او په کابل کښي د هندوستان د سفير په شتون سره دولت ته وسپارل سي .

۞ يکشنبه د لېندۍ ۲۷ مه

د ښوونې او روزنې د څرنګوالي په لوړوالي کې د ايکوپ پروګرام پر لارو چارو باندي د رغېدو دوه ورځنى خبر نغونډه د ښوونکو د روزنې په لوړه موسسه کښي جوړه سوه .

غونډي ته محمد قادري، د ښوونې او روزنې حيات الله رفيقي او تورو خبري وکړې وروسته برخوالو پدې اړه ډله ايز کارونه سر ته ورسول .

۞ يکشنبه د لېندۍ ۲۷ مه :

د ملګرو ملتونو د نړۍ وال سازمان د سرمنشي کوفي عنان د سياسي چارو مرستيال ګويانو چي کندهار ته راغلي و د دولتي چارواکو او ولايت شورا د مشرتابه او غړو سره په هغه کتنه کښي چي د ولايت په مقام کښي وسوه څرګنده کړه چي د ملګرو ملتو د چارو د څېړلو او د ولسي جرګې په پرانستونکې غونډه کښي د ګډون له پاره راغلي دی . په غونډه کښي د ولايت مرستيال غلام جيلاني همايون او د ولايتي جرګې رئيس احمدولي کرزي د ښه راغلاست د ويلو تر څنګ د ملګرو ملتونو د مرستو د غځېدو غوښتنه وکړه .

۞ دوشنبه د لېندۍ ۲۸ مه :

د ارغنداو ولسوالۍ د خاليشک او سېدونکي غلام رسول د اروا ښاد عبدالله خان بابي د بولان کاربز اړوند سل جريبه مځکه د څلورو کلونو له پاره د ښځينه پوليسو د خير په صندوق مسئولي نورالحياتي په واک کښي ورکړه سوه وروسته دغه غلا څرګنده او موضوع د لاڅېړلو له پاره د ولايت مقام له لوري تعقيب او د غلام رسول او د نوموړي صندوق د مسئولي لاس ترې لنډ سو .

۞ دوشنبه د لېندۍ ۲۸ مه :

د (۲۰۵) نمبر قول اردو قوماندان تورن جنرال حمت الله روفي په ارغسان او سپين بولدک کښي د خپلو ميشتو افسرانو او سرتېرو سره د دوی د چارو د څېړني او په دندو کښي د لا پرمختګ په موخه وکتل .

۞ سه شنبه د لېندۍ ۲۹ مه :

د ولايت مرستيال غلام جيلاني همايون د ايران د جنرال قونسل سره وکتل . قونسل د زرنج، دلارام تر منځ د هغه سړک تر څنګ چي د هندوستان هيواد له لوري جوړ ېږي د يوه بل سړک لاسليک د جوړېدو تياری وښود چي په کوروداني سره د لوړپوړو چارواکو سره تر غور کولو پوري يې پر بکړه وغځېده .

۞ ۳ شنبه د لېندۍ ۲۹ مه :

د (۲۰۵) نمبر اتل قول اردو قوماندان تورنجنرال رحمت الله روفي د دغي قول اردو د دوهمي لوا د سرتېرو او افسرانو سره چي د زابل ولايت په کلات کښي استوګن دي وکتل . او پر اړوندو چارو او په دندو کښي د لا پرمختګ او اغېزمنتيا په اړه وږغېدل .

۞ ۳ شنبه د لېندۍ ۲۹ مه :

د کندهار پوليسو د هغو او عرادو لاري موټرانو څخه چي په ګرشک کښي غلا سوي وه په اووم امنيتي سمت کښي د يوې عرادې تر موندلو وروسته پنځه عرادې نور هم پيدا کړه . چي خپلو څښتنانو ته به وسپارل سي .

د دې تر څنګ په توپخانه بازار کښي يو هټۍ وال د موټرانو د (۱۵) جعلي پلېټونو سره نيول سوی او د کوټ بابا کوخې شاته په يوه قبر کي يې (۸۰) کڅوړي هيروئين هم نيولي دي .

۞ ۵ شنبه د مرغومي اوله :

د روماڼيا د دفاع وزير د کندهار په هوايي ډګر کښي د خپلو سرتېرو سره د کتني په موخه چي کندهار ته راغلي و د ولايت شورا د رئيس احمدولي کرزي، د ولايت د مرستيال غلام جيلاني

همایون او امنیه قوماندان سموتوال عبدالمالک واحدي سره وکتل .

هغه د بریالیو ټولټاکنو او د ولسي جرګې د پرانستلو له امله د رومانیا د جمهور رئیس ترینای سیسکو د مبارکی مراتب وړاندي کړه او خرګنده یې کړه چي د دوی سرتېري به د ملي پولیسو او ملي اردو تر بشپړ تابه پوري په افغانستان کښي د دیموکراسی او امنیت د پرمختګ په موخه پاته سي .

❁ ۵ شنبه د مرغومي اوله :

د ارغنداو د ژوندو هدیرې په کلي کښي د ملي پیوستون د پروګرام له لاري د یو ملیون او (۸۲) زرو افغانیو په لګښت د حمام جوړولو بنسټ ایښودنه وسوه . په دې مراسمو کښي د کلیو د پراختیا رئیس احمدشاه پیرعلي او د هبیتات مشر عبدالباقي پوپل د کلي د یو شمېر مشرانو او سیمه ایزي شورا د خلکو تر څنګ حاضر وه، مخکي د دې پروګرام له لاري په دې کلي کښي د یو میلیون او څلور سوه زرو افغانیو په ارزښ د (۱۵) لاسي بمبو د جوړېدو چاري بشپړي سوي دي .

❁ ۵ شنبه د مرغومي اوله :

د احمدشاهي ښوونځي نوې وداني چي په کندهار کښي د بیا رغوني د ډلي P R T الخوا په دوه پوړه کښي د (۱۳۰) زرو امریکایي ډالرو په لګښت د حضرت جي بابا په سیمه کښي جوړه سوې وه په داسي حال کښي پرانستل سوه چي د دې ډلي باندنیو غړو تر څنګ د پوهني رئیس حیات الله رفیقي هم شتون درلود .

❁ یکشنبه د مرغومي ۴ مه :

د ولایت شورا په غونډه کښي چي د نارنج په ماڼۍ کښي د احمدولي کرزي په مشري جوړه سوه د خلکو پر وړاندیزونو چي د برېښنا د وېش او بولدک ته د لویو بسونو د تللو د پیل په اړه وه غور وسو . د برېښنا رئیس انجنیر فضل احمد وویل چي د زیاتو تخنیکي ستونزو سره سره به د برېښنا پارچاوې د ۲۴ ګړیو پر ځای ۱۲ ګړیو ته راټیټي کړو .

❁ یکشنبه د مرغومي ۴ مه :

شل کړي د پرسونل ضد ماینونه د امنیې قومنداني پولیسو د خلکو په مرسته د پنځم سمت د هدیره څخه په یوه زاړه قبر کي پیدا کړه . همدارنګه پولیسو یو شمېر ټګان نیولي چي د هرش فلزي ایکی یې د ارزګان یوه اوسېدونکي ته د سرو زرو په نوم په (۱۴۵۰۰۰) افغانیو ورکړي دي .

❁ یکشنبه د مرغومي ۴ مه :

د کندهار د میوند ولسوالي د عشق آباد په سیمه کښي شپږ تنه په لویه لاره کښي د مسافرینو د وژلو له پاره د ماینونو د ښخېدو پر مهال پخپله د ماین په چاودنه کښي ووژل سول .

❁ دوشنبه د مرغومي ۵ مه :

د ډنډ ولسوالي د امنیې قومنداني پولیسو یو عراده موټر چي چاودېدونکي توکي پکښي بار وه د درو تنو سره یو ځای نیولي دي .

❁ دوشنبه د مرغومي ۵ مه :

د ملي امنیت سرېو په پنځم سمت کښي د یو تن له کوره یو میل RPG، یو میل سل ډزي ماشیندار، یو دوربین، د کلاشینکوف شاجوران او سل جوړي پوځي درېښي او بوټونه تر لاسه کړي دي .

❁ ۳ شنبه د مرغومي ۶ مه :

د کندهار ښار د ۱۱ ښوونځیو دوو زرو نجونو د ولایتي بیا رغوني د ډلي یا P R T له لوري د توکو د ورکولو وروسته د سر ته رسول سوو لاسي کارونو په سیالی کښي چي نن په زرغونه انا لیسه کښي تر سره سوې د سید جمال الدین افغان لیسې نجونو لومړی ځای تر لاسه کړ .

❁ ۳ شنبه د مرغومي ۶ مه :

د ډنډ ولسوالي د شاه محمود هوتک لیسه چي د اته میلیونه او پنځه سوه زرو افغانیو په لګښت جوړه سوې په داسي حال کښي چي د پوهني رئیس حیات الله رفیقي او د دې ټیم مسئولینو شتون درلود پرانستل سوه .

❁ ۳ شنبه د مرغومي ۶ مه :

۱۱۲ ګیلنه جعلي مبلایل چي د ګل احمد سوداګر له لوري د پولي د هغه خوا څخه کندهار ته راوړه سوي وه د مرافعه محکمې د لارښووني پر بنسټ وسوځل سوه .

❁ ۳ شنبه د مرغومي ۶ مه :

د همدې ورځي د ماز دیګر پر پنځو بجو د هلمند کندهار تر منځ د غورک په سیمه کښي د مسافرو پر یوه موټر وژونکو ډزي کړي، یو مسافر وژل سوی او یو یې ټپی سوی دی، همدارنګه د دې ورځي په شپه کي د ګرشک ـ کندهار د لویې لاري په اوږدو کښي پر امنیتي پوسته د برید په نتیجه کښي یو پولیس سرتېری وژل سوی دی .

❁ ۳ شنبه د مرغومي ۶ مه :

په دامان ولسوالي کي د کوکنارو د کښت د مخنیوي په اړه غونډه جوړه سوه چي د ولسوالي د ګڼ شمېر سپین ږیرو سره د محدره توکو سره د مبارزې رئیس ګل محمد شکران او د علماو شورا رئیس مولوي غلام محمد غریب هم شتون درلود . په دغه غونډه کښي ډاکټر سردار ولي، مولوي غریب، شکران او د خلکو په استازیتوب حاجي عبدالرحمان او د دې ولسوالي ولسوال سراج احمد خبري وکړې .

❁ ۴ شنبه د مرغومي ۷ مه :

د شل زرو پاکستانیو کلدارو په ارزښ وړیني جامې د وارا مؤسسې له لوري د ۱۲ وړوکتونو د کوچنیانو له پاره په داسي حال کښي چي د کار او ټولنیزو چارو رئیس دوست محمد ارغساني شتون درلود د وړکتونو مسئولي شکوفي سحر ته ورکړه سوې .

❁ ۴ شنبه د مرغومي ۷ مه :

د ولایتي جرګې په غونډه کښي چي د نارنج ماڼی کښي د

احمدولي كرزي په مشري جوړه سوه او د كندهار لوى جامع جومات يې د حضرت عمر په جامع جومات ونوماوه د هغې د بيا پيلېدو او بشپړېدو پر لارو يې غور وكړ .

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۸ مه :

د افغان ـ هوتكي پاڅون درې سوومه كليزه د اطلاعاتو كلتور رياست په نوښت د آزادو ليكوالو په پراخ ګډون سره د منډيګک په مانۍ كښي د اطلاعاتو كلتور او ګرځندوى د رئيس عبدالمجيد بابي په وينا سره پرانستل سوه . او د دوى تر رياست لاندې د ماپښين تر دوو بجو پورې په داسې حال كښې چې و غونډې ته د كندهار والي اسدالله خالد پر وينا سربېره ښاغلو ډاكټر عبدالرازق پالوال، عبدالغفور لېوال، عبدالكريم طالب رحيمي، محمدصادق ژړک، عبدالقديم پتيال، عصمت الله زهير، عبدالله عاطفي، او حاجي امين الله مقالې هم واورولې وغځېده . د وخت د لږوالي له امله د عبدالمجيد بابي او نوراحمد قرآنمل مقالې له لوستلو څخه پاته سوې .

د غونډې د پرېكړه ليک تر لوستلو وروسته محمدآصف صميم د غونډې كار وارزاوه، او بيا د ۱۲ ولاياتو او كوټې څخه د راغلو مېلمنو په ګډون د غونډې په سوونو برخوالو په هغه مېلمستيا كښې برخه واخيسته چې كندهار والي اسدالله خالد د دوى په وياړ جوړه كړې وه .

برخوالو پر ۳ بجو په اطلاعاتو كلتور رياست كښې د همدې رياست په نوښت او زيار سره د علامه رشاد بابا د جامو، او يو شمېر نورو توكو، چاپي او ناچاپه آثارو او (۲۵۰) ټوټو لويو عكسونو د جوړ سوي نندارتون څخه د اطلاعاتو كلتور د رئيس عبدالمجيد بابي او ولايت مقام د مرستيال غلام جيلاني همايون په ګډون ليدنه وكړه . او بيا په ګډه ټولو د زاړه ښار د پاته شونو او ميرويس نيكه د زيارت څخه ليدنه وكړه او د دې لوى سياسي اتل او د هيواد د ژغورونكي مېړه سپېڅلي روح ته يې دوعا وكړه .

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۸ مه :

د څه كم اته ميليونو افغانيو په ارزښ د ملي پيوستون د پروګرام د لارې (۳۰) پروژې په درو ولسواليو كښې بشپړه او نن په يوه پراخه غونډه كښي د كليو د پراختيا رئيس انجنير پيرعلي لخوا په همدې ولسواليو كښې د شوراګانو مشرانو ته ستاينليكونه وركړه سوه .

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۸ مه :

د بشر د حقوقو په خپلواک سيمه ايز دفتر كښي د ښځو د ژوندانه پر ستونزو د غور له پاره د روښان اندو او فرهنګي ښځو او هم د امنيتي قومندانۍ د استازو په ګډون مشورتي غونډه جوړه سوه .

❁ ۵ شنبه د مرغومي ۸ مه :

په پنجوايي ولسوالۍ كښې د كوكنارو د كرلو په اړه پراخه غونډه جوړه سوه چې د مخدره توكو سره د مبارزې رئيس ګل محمد شكران، د علماو شورا څخه الحاج عبدالجليل كمينه، د ودان افغانستان څخه د همدې برخې مسئول ډاكټر سردار ولي پر ويناوو سربېره د سيمې يو شمېر سپين ږيرو او استازو هم د همدې كښت د زيان او د بزګرو سره د مرستو په اړه ويناوې واورولې .

❁ يكشنبه د مرغومي ۱۱ مه :

د پوهني رئيس حيات الله رفيقي د ژړې ولسوالي د ۲۸ ښوونځيو د مشرانو سره د هغوى د ستونزو د هوارې په اړه په داسې حال كښي چې د ژړې ولسوال او د دې ولسوالۍ ګڼ شمېر سپين ږيري هم حاضر وه وكتل .

❁ يكشنبه د مرغومي ۱۱ مه :

په كندهار كښې د افغانستان بانک ودانۍ د امريكا د متحده اېالاتو د ملكي چارو د مرستندويه ادارې (CAPT) لخوا د (۳۱۷۰۰۰) امريكايي ډالرو په ارزښ ورغول سوه او نن د يوې غونډې په ترڅ كښي چې د بانک مسئول فضل احمد اعظمي هم شتون درلود د ګټې اخيستني وړ وګرځېده .

❁ يكشنبه د مرغومي ۱۱ مه :

كندهار والي اسدالله خالد د ولايتي شورا په غونډه كښي په برخه اخيستنه سره د ولايتي شورا د مشر احمدولي كرزي او غړو سره پر يو لړ مسايلو باندې چې په هغه كښي پر هديرو د خودسره كورونو او تاريخي اماكنو د ساتنې موضوعات شامل وه غور وكړ، او پرېكړه وسوه چې د ګډ پلان له مخې به په دې اړه اقدام وكړي .

❁ يكشنبه د مرغومي ۱۱مه :

د اطلاعاتو كلتور او ګرځندوى رئيس عبدالمجيد بابي په زيار او هڅو سره عامه كتابتون د طلوع افغان د ۲۲ ټوكو كليكسونونو څښتن سو . دغه كليكسونونه د سپين ږيري ليكوال محمدناصر نصرت سره وه چې د عامه كتابتون له پاره يې سوغات او په مقابل كښي د كندهار والي اسدالله خالد له لوري د دوى د دغه لوړ احساس له امله ورته (۶۶۰۰۰) زره افغانۍ وركړه سوې . دغه كليكسونونه د ۱۳۲۴ څخه تر ۱۳۳۹ كلونو پورې دي .

❁ يكشنبه د مرغومي ۱۱ مه :

د شګي ولسوالۍ په مركز تخته پل كښي د كوكنارو د كښت د مخنيوي په اړه پراخه غونډه د نشه يي توكو سره د دړېدني د رياست او ودان افغانستان د مؤسسې په ګډ همغاړيتوب سره جوړه سوه چې د علماو شورا رئيس مولوي غلام محمد غريب هم وريكښې ګډون درلود .

❁ ۲ شنبه د مرغومي ۱۲ مه :

د لوى افغانستان د كوټې له ښار څخه پروفيسر صاحبزاده حميدالله شل ټوكه بېلابېل ادبي، ديني، علمي او هنري كتابونه د خپل استازي په وسيله د عامه كتابتون له پاره د اطلاعاتو كلتور رئيس عبدالمجيد بابي ته رالېږلي چې د بابي لخوا د هغوى څخه د

کور ودانۍ او منتې په څرګندولو سره کتابونه د عامه کتابتون مسئول حبیب الله ته د ټولو د ګټې اخیستنې له پاره وسپارل سول .

۞ ۳ شنبه د مرغومي ۱۳ مه :

کندهار والي اسدالله خالد د ایران د قنسل شیخ زین الدین سره د هغوی د هیواد له لوري د بیا ودانولو د سر ته رسېدلو او لاس لاندې چارو د څرنګوالي په اړه وکتل .

د بل خبر له مخې کندهار والي د پاکستان د قنسل سره په کندهار کښې د پاکستاني کارګرو د ستونزو په اړه هم وکتل .

۞ ۴ شنبه د مرغومي ۱۲ مه :

د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی ریاست د عامه کتابتون د ودانۍ تر څنګ د کتنې لویه خونه چې د ایران هیواد په مرسته جوړه سوې وه نن د یوې ناستې تر پیل مخکې د ولایت د اداري رئیس غلام فاروق فرهمند، د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی د رئیس عبدالمجید بابي او ایران قنسل شیخ زین الدین په لاسونو پرانستل سوه .

د پرانستنې په دود کښې د همدې خونې د سپارلو تړون پاڼې د ښاغلو بابي او شیخ زین الدین تر منځ تر لاسلیکولو وروسته یوه او بل ته ورکړه سوې .

دغه خونه ۱۸ متره اوږدوالی او اووه متره سور لري چې د ایران د قنسل په وینا (۵۵۰۰۰) امریکایي ډالره وربانډې لګېدلي دي .

په غونډه کښې د شیخ لخوا پر لنډه وینا سربېره ښاغلي بابي هم د کتابتون د ژوندانه په اړه رڼا واچول چې د (۱۳۲۰) کال څخه یې خپلې چارې راپیل کړې څو بیا په (۱۳۶۸) کښې د خپل منځي جګړو د اور په لمبو کښې هر څه د خاورو سره خاورې سوه .

دا کتابتون د سوځلو او نړېدلو وروسته طالبانو ورغاوه او اوس تر (۶۰۰۰) ټوکو پوري د کتابونو، مجلو او نورو لویو او وړو خپرونو لرونکی دی .

ښاغلي بابي زیاته کړه همدغه د کتنې خونه موږ اوس د علامه رشاد بابا د جامو او د ده د ژوندانه سره د یو لړ نورو پاته شونو ارزښتناکو توکو په برکت نوراني ګرځولې دي چې دا په افغانستان کښې یو بېساري نوښت دی چې د اطلاعاتو کلتور ریاست له لوري یې ګام پورته سوی دی .

ښاغلي بابي د ښاغلي عزیز الله ساکزي څخه هم ډېره منته وکړه چې د همدې خونې له پاره یې د (۶۰) ګزه ټغر او د ډېر ښه څرنګوالي لرونکې (۸) پښو الماریو او د ښکلو (۲۰) ټوټو پردو مرسته یې کړېده .

۞ ۳ شنبه د مرغومي ۱۳ مه :

د خواجک بابا په سیمه کښې د ورځې د ۱۱ بجو په شاوخوا کښې د ائتلافي ځواکونو پر کاروان باندې د بمي برید او چاودنې په پایله کښې یوه ښځه او کوچنی چې پر لارې روان وه ټپیان سول .

ائتلافي ځواکونو ته د دغه کرولا ډوله موټر په چاودنه کښې هیڅ زیان نه دی رسېدلی .

۞ ۴ شنبه د مرغومي ۱۴ مه :

د ولایتي شورا غونډه د شورا د رئیس احمدولي کرزي په مشرۍ د نارنج په ماڼۍ کښې جوړه سوه او د خلکو پر عرضیانو سربېره د شورا څو غړي ورته غوره سوه څو هر یو په بېله بېله توګه د اړوندو ادارو سره وګوري .

د لوی پاتاو د پاکولو خبره هم وڅېړل سوه او پرېکړه وسوه چې مسئول یې راتلونکې غونډې ته راسي څو د شورا د غړو غوښتنې واوري .

۞ ۵ شنبه د مرغومي ۱۵ مه :

کندهار والي اسدالله خالد د ملي دفاع د وزارت څخه راغلي پلاوي سره د دوی د کار په کوټه کښې وکتل . په کتنه کښې د ناقانونه وسلو د ټولولو یا ډاباګ په اړه خبرې وسوې . او په دې لاره کې د پرمختګ او ستونزو د لیرې کېدو له پاره پرېکړې وسوې .

۞ ۵ شنبه د مرغومي ۱۵ مه :

د سپین بولدک په ولسوالۍ کښې د کوکنارو د کښت د مخنیوي په اړه پراخه غونډه د نشه يي توکو د ریاست د مؤسسې په زیار جوړه سوه چې په هغه کښې د نشه يي توکو سره د دربدنې د رئیس ګل محمد شکران، د علماو شورا رئیس مولوي غلام محمد غریب سربېره ګڼ شمېر سپین ږیرو، قومي مشرانو، ښوونکو او زده کړیانو برخه لرله .

۞ ۵ شنبه د مرغومي ۱۵ مه :

د سهېل لوېدیځ سمت د ۱۲ ټولګیو وزګار سوو (۳۵۰) تنو چې ۴۰ تنې یې نجونې وې د کندهار پوهنتون په ودانۍ کښې د کانکور آزموینه تېره کړه .

چې په بهیر کښې یې د ولایت مقام اداري رئیس غلام فاروق فرهمند، د اطلاعاتو کلتور رئیس عبدالمجید بابي، د پوهنې رئیس حیات الله رفیقي، د پوهنتون رئیس پوهاند قمرالدین سیفي او د ولایت مقام مشاور محمدانس برخه لرله .

۞ ۵ شنبه د مرغومي ۱۵ مه :

په کندهار کښې د ولایتي بیا رغوني ډلې د امنیې قومندانۍ څلور ارغړي وران سوي موټران تر جوړوني وروسته بیرته د همدغه قومندانۍ اړوندانو ته وسپارل .

۞ یکشنبه د مرغومي ۱۸ مه :

د پرمختګ دښمنانو د لوویالې په سیمه کښې د قبایلو ښوونځي ته اور اچولی او هلته په زیرمتون کښې یې ټول پراته قرآن شریفونه او ورسره د لوست کتابونه سوځلي دي .

کندهار والي اسدالله خالد وویل : دلته تر (۱۱۰۰) تنو پوري هلکانو او نجونو لوست وایه .

۞ یکشنبه د مرغومي ۱۸ مه :

د امنيي قومندانۍ پوليسو د اتم سمت په يوه کور کښې ۱۲۹ بوتله شراب نيولي او په اړه يې څېړنه روانه ده .

۞ يکشنبه د مرغومي ۱۸ مه :

يو تن پخواني قومندان شکر محمد ۱۲۹ د زيکويو گولۍ، د يارلس توغندي، ۵۷ واړه ماينونه او د توغنديو ۲۰۰ پټاکۍ د امنيي قومندانۍ مسئولينو ته وسپارل .

۞ يکشنبه د مرغومي ۱۸ مه :

د سړې هوا او يخ له امله د کډوالو چارو رياست د UNCHR په مرسته څه شمېر شړۍ په ژړۍ دښت کښې پر بې کوره سوو کډوالو ووېشلې .

۞ ۳ شنبه د مرغومي ۲۰ مه :

د لوی اختر لمونځ په لويه عيدگاه کښې د سلگونو زرو ښاريانو او د ليري و نژدې چارچاپېره سيمو څخه د راغلو کسانو په گډون اداء کړه سو . د لمانځه تر اداينې مخکې د همدې ورځې له امله د علماو شورا رئيس مولوي غلام محمد غريب او بيا د همدې رياست څخه قاري سيداحمد د اختر د فضيلت سربېره په هر اړخيزه توگه وږغېده وروسته د ملت بابا د مبارکۍ پيغام د اطلاعاتو کلتور او گرځندوی رئيس عبدالمجيد بابي، او د ولسمشر پيغام کندهار والي اسدالله خالد له لوري ولوستل سول . اسدالله خالد د پيغام د لوستلو سره جوخت خپله وينا هم واورول . خلکو ته يې د همدې ورځې د مبارکۍ تر ويلو وروسته د هيواد او خلکو دښمنان چې د ښوونځيو سوځل، د علماو او اداري مسئولينو وژل او د ځان وژونکو بريدونو په وسيله، د سولې او امن ورانول يې خپله دنده گرځولې ده سخت وټکول .

د خلکو څخه يې د سولې، امن او يووالي غوښتنه وکړه او د کوکنارو د کښت څخه يې د مخ گرځولو په اړه هم ټينگار وکړ، د لمانځه تر اداينې وروسته کندهار والي اسدالله خالد سره د ښار او ولسواليو څخه گڼ شمېر ورغلو خلکو د منديگک په ماڼۍ کښې د روغبړ او اختر مبارکۍ دود پر ځای کړ .

۞ ۵ شنبه د مرغومي ۲۲ مه :

امنيه قومندان سمونوال عبدالمالک واحدي د ميانشين او شاه وليکوټ ولسواليو د سپين ږيرو او مخورو سره په بېله بېله توگه وکتل . هغوی او د علماو شورا رئيس مولوی غلام محمد غريب د کوکنارو د کښت د مخنيوي په اړه ويناوي واورولې .

۞ ۵ شنبه د مرغومي ۲۲ مه :

د ميانشين د بېوزلو خلکو سره د ائتلافي ځواکونو له لوري د تودو کاليو او خوراکي توکو مرسته وسوه او سربېره پر دې يې د يوې روغتيايي ډلې له لوري ناروغه کسان وکتل سول او درمل ورته ورکړه سول .

د دې ځواکونو مشر جان جوينيل وويل موږ به دا ډول کړنه نورو ليرو پرتو سيمو ته هم وغځوو .

۞ ۵ شنبه د مرغومي ۲۲ مه :

پوليسو د کندهار ولايت په اړونده سيمو کښې په ۲۲۰ جريبه ځمکه کښې د کوکنارو کښتونه له منځه يووړل .

۞ شنبه د مرغومي ۲۴ مه :

د کوکنارو د کښت د مخنيوي په اړه د پوهاوي دوهمه غونډه د ارغنداو ولسوالۍ کې جوړه سوه او غونډې ته د نورو تر څنگ د علماو شورا رئيس مولوي غلام محمد غريب هم په دې اړه وينا واورول .

۞ يکشنبه د مرغومي ۲۵ مه :

د ولايتي شورا په غونډه کښې چې د احمدولي کرزي په مشرۍ په نارنج ماڼۍ کښې جوړه سوه غونډې ته د ښار او کور جوړولو رئيس انجنير ننگيالي او ښاروال زمري عثمان هم وربلل سوي وه چې د کابل په دوه لارې کې د ترانسپورټي اډې د ودانيو د قرارداد او بيا ښار او کور جوړولو رياست ته د هغه د ورسپارلو او بيا ښاروالۍ ته يې د ورکړې په اړه ټينگار وسو .

په دې غونډه کښې د ولايتي بيا رغوني ټيم د USIAD او د نړۍ د روښنايي پروگرام استازو هم گډون کړی و او په ولسواليو کې يې د لمر څخه د برېښنايي گټې اخيستنې د پروگرام په اړه پريکړه وکړه چې راتلونکي غونډې ته به د ولسواليو د شورا غړي راوبلل سي او هغوی به په دې اړه ځرگندوني ورته وکړي .

۞ يکشنبه د مرغومي ۲۵ مه :

د طالبانو په واکمنۍ کښې د استخباراتو رئيس او بيا د کورنيو چارو د وزارت مرستيال ملا عبدالصمد خاکسار چې د جهاد وتلې څېره، خير غوښتونکی او پرهېزگاره شخص و خپل کور ته د تللو پر مهال په کاريز بازار کښې د دوو تنو موټرسيکل سپرو لخوا د توپنچې په ډزو سره وواژه سو .

خاکسار ولسي جرگې ته هم ځان نوملی و خو د رايو ټاکلې کچه يې نه کړه تر لاسه، په کابل کې اوسېده او د اختر په ورځو کې د دوستانو د ليدنې له پاره کندهار ته راغلی و .

۞ يکشنبه د مرغومي ۲۵ مه :

په پنځم سمت کښې پر لوی سړک د کاناډايي ځواکونو د کاروان په وړاندې په ځان مرگي بريد کښې لس تنه ټپيان او ۲ تنه مړه سول . دغه بريد په ټونس موټر کښې سوی او بريد کوونکی له منځه تللی دی .

۞ دوشنبه د مرغومي ۲۶ مه :

د کوکنارو کښت د مخنيوي په اړه د ډنډ ولسوالۍ اړوند د شاه محمود هوتکي په ليسه کې د دې ولسوالۍ د گڼ شمېر سپين ږيرو په گډون غونډه جوړه سوه . غونډې ته د علماو شورا رئيس مولوي غلام محمد غريب، د مخدره توکو سره د دربدنې رئيس گل محمد شکران، د پوهنې رئيس حيات الله رفيقي، او د ډنډ ولسوال احمدولي اڅکزي ويناوي واورولې .

۞ دوشنبه د مرغومي ۲۶ مه :

د هيواد په زياتو ولايتونو کښې په ځانگړې توگه په کندهار، ارزگان، زابل، کابل، پروان، کاپيسا، تخار او کندز کې واوري او بارانونه د څو ورځو راپديخوا دوام لري .

۞ ۳ شنبه د مرغومي ۲۷ مه :
کندهار والي اسدالله خالد د جایکا مؤسسې له مسئول کیمورا سره وکتل . کیمورا د بشپړه سوو پروژو او تر لاس لاندې پروژو په اړه چې په هغه کښې د شاهي کانال پاکېده هم شامل دي خبرګندوني وکړې .
کندهار والي د هغوی د کارونو او مرستو څخه مننه وکړه او په کارونو کښې د اسانتیا د برابرېدو ژمنه یې ورسره وکړه .
۞ ۴ شنبه د مرغومي ۲۸ مه :
ولسمشر حامد کرزي د کندهار والي اسدالله خالد، ديني عالمانو، د ولایتي شورا د غړو او قومي مشرانو سره د ویډیویي ټلیفون په اړیکو سره په کندهار کښې وروستي پېښې وڅېړلې او د سپین بولدک او چمن د شهیدانو کورنیو ته چې دوستان یې پرون په همدې ولسوالۍ کښې د یوې وژونکې پېښې په ترڅ کښې ژوند له لاسه ورکړی و ډاډ ورکړ .
په دې دردناکه پېښه کښې ۲۶ تنه ټپیان او ۲۱ تنه شهیدان سول . په دغه ویډیویي اړیکو کښې د کندهار ديني عالمانو، مشرانو او ولایتي شورا غړو په وار سره خبرې وکړې تروریستي برید یې په پولې له هغه خوا څخه سمبالېدونکي وباله او د سرحدي ولسواليو د پولیسو او سرحدي امنيتي کمربند د پیاوړتیا او دلته د یوې ديني مدرسې د جوړښت غوښتنه یې څني وکړه .
ولسمشر هم د وروستیو پېښو له امله خواشیني څرګنده کړه . هغوی وویل : دا ۳۰ کاله افغانستان او قبايلي سیمي که چمن، باجوړ او یا وزیرستان دي د تروریزم د دسیسې او خرابۍ سره مخ دي .
۞ ۴ شنبه د مرغومي ۲۸ مه .
د ژړۍ ولسوالۍ کي د کوکنارو د نه کرلو د تبلیغاتي بهیر په لړ کښې یوه غونډه جوړه سوه چې د علماو شورا رئیس مولوي غلام محمد غریب، د مخدره توکو د مخنیوي رئیس ګل محمد شکران او د سیمې د سپین ږیرو څخه حاجي محی الدین او حاجي باران آغا په دې اړه وریکښې ویناوي واورولې .
۞ ۵ شنبه د مرغومي ۲۹ مه :
د کورنیو چارو وزارت سرپرست انجنیر ضرار احمد مقبل د سپین بولدک د پېښې د شهیدانو د پاته کسانو سره په کتنه کښې هغوی ته د ډاډګیرنې تر څنګ د ولسمشر د خواخوږۍ پیغام ورساوه او په بیا یې د مرستې په توګه درې سوه زره افغانۍ هم هغوی ته ورکړې .
په دې پېښه کښې د اختر د خوښیو په لړ کي د غبر ایستلو په مېله کښې د چاودنې په ترڅ کښې ۲۷ تنه شهیدان او څه د پاسه ۳۶ تنه ټپیان سوه .
مقبل په دې سفر کښې د سپین بولدک ولسوالۍ او کندهار په لویه لار کښې امنيتي پوستې هم وکتلې .
۞ ۵ شنبه د مرغومي ۲۹ مه :
د کندهار د امنيتي قومندانۍ د څېړلو په اړه د کورنیو چارو سرپرست انجنیر ضرار احمد مقبل په داسي حال کښې چې کندهار والي اسدالله خالد هم شتون درلود د سپین ږیرو، دولتي ادارو د مسئولینو سره د مندیګک په ماڼۍ کښې وکتل . هغوی خلکو ته ډاډ ورکړ چې د ښار او ولسواليو د امنیت په ټینګښت کي به غښتلي ګامونه واخلي .
۞ ۵ شنبه د مرغومي ۲۹ مه :
د ښځینه لاسي کارونو پلورنځي د مېرمنو ټولني په ودانۍ کښې چې د جاپان هیواد د جایکا مؤسسې لخوا د (۱۳۰۰۰) امریکایي ډالرو په لګښت جوړ سوی دی په داسي حال کښې چې د مېرمنو ټولني رئیسه صفیه عمه جانه او یو شمېر نور دولتي مسئولین هم حاضر وه پرانستل سو .
۞ شنبه د سلواغې لومړۍ :
په زرګونو اوسېدونکو په داسي حال کښې چې کندهار والي د سپین بولدک د علماو شورا رئیس، ديني عالمانو، د ولایتي شورا غړو هم شتون درلود په احتجاجیه لاریون سره د سپین بولدک د تیري دوشنبې تروریستي بریدونه وغندل او کندهار والي خالد، د علماو شورا رئیس مولوي غلام محمد غریب، د ولایتي شورا منشي او نورو ویناوالو د دې بریدو پړه د پاکستان پر استخباراتي سازمان ور واچول .
۞ شنبه د سلواغې لومړۍ :
۱۳۵ تنو خوانانو ته چې شپږ میاشتي دمخه یې د UNOPS مؤسسې په مالي لګښت حرفوي زده کړې راپیل کړې وې سړي لیکونه او د کسب سامانونه وویشل سول .
دغو زده کړیانو ته د ورځي شپږ امریکایي ډالره هم ورکول کېده .
۞ یکشنبه د سلواغې ۲ مه :
د ولایتي شورا غونډه د احمدولي کرزي په مشرۍ د مندیګک په ماڼۍ کښې جوړه سوه په غونډه کښې د خلکو د عرضیاڼو، د پاتاو د کار د پاکېدو د ښه څرګندتیا تر څنګ پر هدیرو باندې د خودسره کورونو د مخنیوي په اړه هم غور وسو، همدارنګه د اړونده مسئولینو تر څنګ د ولایتي شورا (۳) تنو په ګډون د کابل د نوي اډې د مارکېټ د قراردادیانو د موضوع د څېړلو له پاره پلاوی غوره سو .
۞ یکشنبه د سلواغې ۲ مه
انجنیر ضرار احمد مقبل د امنيتي قومندانۍ د منسوبینو سره د امنیت د غښتلتیا، تروریستي بریدونو او کوکنارو د کرهڼې او قاچاق د مخنیوي په اړه وکتل .
۞ یکشنبه د سلواغې ۲ مه :
د سپین بولدک ولسوالۍ کښې د خونړۍ پېښې د ټپیانو او شهیدانو د خواخوږۍ غونډه د قومي او سرحدي مشرانو، ملي سوداګرو او د کوچیانو د شورا د غړو په ګډون د قومونو په ریاست کښې د نوموړي ریاست د رئیس عبدالباقي رغبت په مشرۍ جوړه سوه . چې په لړ کښې یې دا ډول کړنې او د هغوی

پاروونکي او پالونکي په کلکه وغندل .

❁ یکشنبه د مرغومي ۲مه :

د ملي دفاع وزارت د پرسونل او تعلیماتو معین د ۲۰۵ لمبر قول اردو د قومنداني ببلابېلې څانګې وکتې . سر تېري او افسران يې د امنيت د پياوړتيا لـه پاره وهڅول او د هغوی د کار او کړنو څخـه يې خوښي څرګنـده کـړه . همدارنګـه هغوی پـه ۱۵۰ بستريز روغتون کښې په بستر سوو ناروغانو ايکې هم ووېشلې .

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۴ مه :

د بانـدنيو اړيکـو مسئول شاه احمـد سـعيد د هندوسـتان د جنرال قنسل سوډي سينګ سره په داسي حال کښي چي د وچې مېوې سوداګرو هم شتون درلود وکتل او د سوداګرو ستونزې يې وڅېړلې چي د سينګ له لوري يې د هواري ژمنه ورکړه سوه .

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۴ مه :

د بشر د حقوقو د سيمه ايز څېلواک دفتر د غونډو په خونـه کښـي د کوچنيـانو د حقوقـو د ودې او پراختيـا د څـانګې لخوا پـه جوړه سوې غونډه کښي د محکمې ـ څارنوالۍ او امنيې قومندانۍ د مسئولينو پـه غـور سره د کوچنيـانو د سرغړونې لاملونـه وڅېړل سول .

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۵ مه :

د ولايتي شورا په غونډه کښې ۲۱ رسېدلي عرضپاڼې تر غور لانـدې ونيـول سوې او اړونـدو څـانګو تـه راجـع سـوې . د افغـان بېسيم او روشن ټيليفوني شرکتونو څخـه ددوی پـه چـارو کښـي د تخنيکـي سـتونزو لـه املـه د خلکـو د شکايتونو پـه ځـواب کښـي د مخابراتو رئيس څرګنـدونې واورولې او پـه ۲ مياشتو کښي يې د فاکس او انټرنيټ د پيلېدو زېرې ورکړ . همـدا ډول د خلکـو د غوښتنو سره سم د پاتـاو د چـارو د کتنې لـه پـاره دوه تنـه د شورا غړي وګمارل سول .

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۶ مه :

د ښـوونيز بهيـر د لا پياوړتيـا لـه پـاره د ښوونځيـو او لېسـو د مديرانو او آمرانو او يو شمېر ښوونکو په ګډون د ښوونکو او روزنې په عالي مؤسسه کښي غونډه جوړه سوه چي د ښوونې او روزنې د رئـيس حيـات الله رفيقـي سـربېره د پـوهنې وزارت د تـأليف او ترجمې رياست مرستيال عبدالظاهر ګلستاني يې هم برخوال و .

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۶ مه :

د ريګستان ولسوالۍ پر مرکز باندې د دښمن په بريد کي د هغـوی اووه تنـه وژل سـوي او د امنيتـي ځواکونـو پنځـه تنـه ټپيـان سوي دي . د بلې خـوا د دښـمن يـو تـن مړ او يـو تـن ټپـي يـې د جګړې په ډګر کي پاته دي .

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۶ مه :

د ملـي اردو او پوليسـو پـه ګـډو عمليـاتو کښـي دوه تنـه د چاوديـدونکو توکـو سـره چـي پـه ځـانونو پـوري يـې تـړلي او پـر موټرسايکل يې د ښار پر لور حرکت کـاوه د ژړۍ ولسوالۍ پـه پوطاتو کښي نيول سوي دي .

د نيول سوو کسانو سره يوه پايه ټيليفون هم نيول سوی دی .

❁ جمعه د سلواغې ۷ مه :

۱۸۰۰ کيلـو ګرامـه چـرس د ۲۰۵ نمبـر اتـل قـول اردو د سترتېرو له خوا د سپين بولدک په ولسوالۍ کي د تلاښيو پر مهال چي د ۲ تنو قاچاق وړونکو له خوا وړل کېده ونيول سوه .

❁ يکشنبه د سلواغې ۹ مه :

کندهار والي اسدالله خالد پـه هغـه مطبوعـاتي غونډه کښي چي د منډيګک په ماڼۍ کښي جوړه سوې وه خبريالانو تـه وويل چي په تېرو دوو ورځو کښي د کندهار په بېلابېلو برخو کښي نهه تنـه ځـان مرګي د چاوديدونکو موادو سره يو ځـای نيول سوي دي . هغه وويـل پـه نيول سوو کسانو کي ۲ تنه پاکستانيان دي چـي پـه اردو ژبـه خبـري کـوي . هغـه زياتـه کـړه چـي دوی تـر پوښتنې لاندې دي چي پوښتنې يې بشپړې سوې مطبوعـاتو تـه بـه وړاندي سي .

❁ يکشنبه د سلواغې ۹ مه :

د ولايتي شورا غونډه د دې شورا د رئيس احمدولي کـرزي پـه مشرۍ په نارنج ماڼۍ کي جوړه سوه . پـه غونـډه کـي د بېلابېلـو کمېسيونونو د مشرانو څرګنـدونې واورول سـوې . بيـا د مخـدره توکـو پـه وړانـدي پـه کابـل کـي د جـوړې سـوي غونـډې د شـورا مرسـتيال د خپـل شـتون لـه مخـې څرګنـد تياوې واورولې او بيـا د سرکانو د جوړونکو ادارو مسئولينو چي غونډې تـه رابلـل سـوي وه د شورا د غړو پوښتنو ته ځوابونه وويل .

❁ دوشنبه د سلواغې ۱۰ مه :

د ۲۰۵ نمبر اتل قول اردو سرتېرو د يوه هيوادوال پـه مرسـته د کنـدهار د سـپين بولـدک پـر لويـه لار يـو مـوټر چـي پـه چاوديدونکو موادو بار و د هغه د ډرېور سره د ترنک پله ته نژدې کشف او ونياوه . د ډرېور موخـه دا وه چـي د ملي اردو د سرتېرو مخته چاودنه وکړي .

❁ دوشنبه د سلواغې ۱۰ مه :

د کندهار ولايت د ښوونکو اتحاديه د سوي غونـډې پـه تـرڅ کي چي د ښوونکو د روزنې پـه عـالي مؤسسه کښي جوړه سوه د اتحادي يې کړنلاره پـه ۵۴ مادو کي د ټولو لخوا ومنل سوه ،هغوی د مشرتابه له پاره هم ۱۰ تنه ښوونکي پخپله خوښه غوره کړه .

❁ دوشنبه د سلواغې ۱۰ مه :

د بشر د حقوقو په خپلواک سيمه ايز دفتر کي د دې دفتر د مشر انجنير عبدالقادر نورزي پـه ګـډون د دولتي او نـادولتي ادارو څخه د ښځو د ۲۵ تنو استازو په ګډون د ښځو پـه وړاندي د پرتو ستونزو له منځه وړلو په موخه مشورتي غونډه جوړه سوه .

❁ دوشنبه د سلواغې ۱۰ مه :

د کندهار د يوې نوموتې سياسي او ټولنيزې کورنۍ مشر او د کنـدهار د اطلاعـاتو کلتور او ګرځندی د رئيس عبدالمجيد بـابي پلار ارواښاد غلام حيدر خان بابي چي تېره ورځ يې د حق داعي تـه لبيـک ويلي وجنازه يـې نـن پـه ځـانګړي درنـاوي سره د ده د

کورنی د غړو، دوستانو، د کندهار د سلګونو تنو اوسېدونکو او ګڼ شمېر دولتي چارواکو په ګډون د دوی په پلرنی هدیره کې خاورو ته وسپارل سوه .

ارواښاد غلام حیدر خان بابي د ټولنیز سمون او پرمختګ له پاره زیاته موده سیاسي زندانونه او ډول ډول خواشینوونکي ستونزي ګاللي وې، خدای بخښلي بابي په تانده ځوانی کې د خپل نومیالي پلار ارواښاد عبدالله خان بابي او نورو قومي مشرانو په ګډون د هیواد د خپلواکۍ د ګټونکي لوړ درشل غازي امان الله شاه د هغه لښکر ملګرتیا هم کړې چې د غزني ولایت تر سیمي پوري د هیواد د مرکز کابل د نیولو له پاره یې ملا تړلې وه . د ارواښاد په مړینه د کندهار ولایت او سیمي زیاتره اوسېدونکي خواشیني سوي دي، هغوی ته د فردوس جنت او دوستانو ته یې د جمیل صبر غوښتنه کوي .

❁ ۳ شنبه د سلواغې ۱۱ مه :

د لوی کاریز د کلي ۱۰۰ تنو کلیوالو اوسېدونکو د طالبانو د ورتګ سره سم وسلو ته لاس کړی او د دښمن دوه تنه یې وژلي او دوه تنه یې ټپیان کړي دي . د کلیو د خلکو څخه هم یو تن مړ او اووه تنه ټپیان سوي دي، کندهار والي اسدالله خالد د امنیت په ساتنه کې د لوی کاریز د خلکو څخه مننه وکړه .

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۱۲ مه :

د ۲۰۵ نمبر اتل قول اردو منسوبانو د طالبانو د مهال د کندهار د امنیت مسئول ملا جانان د کندهار په پنځم سمت کښي نیولی دی هغه خپل نوم فقیر یاد کړی دی، د ده سره په موټر کي یوه اندازه نشه یي توکي هم نیولي سوي دي .

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۱۲ مه :

د ولایتي شورا په غونډه کښي چې د احمدولي کرزي په مشري په نارنج ماڼی کښي جوړه سوه د ښاریانو پر عرضیاڼو غور وسو . د لمانځه او آذان پر مهال د ټیپ د لوړو ږغونو څخه د ګیلو په اړه د امنیتي قومنداني او اطلاعاتو کلتور ریاست څخه وغوښتل سوه چې سرغړوونکو ته په ګډه قانوني سزا ور کړي .

وروسته د موبایل ټلیفون د شرکت څخه د ګیلو په اړه د دې شرکت استازي احمدشاه ځرګندوني واورولې او بیا د بولدک پر لار د فیضون ترانسپورټ د چلوني د پیل په اړه د ترانسپورټ مسئولینو ځرګندوني وکړې چې دا چاري د ترانسپورټ وزارت تر منل کېدو وروسته پیل کېدای سي .

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۱۲ مه :

د کندهار د بابیانو د نوموتي سیاسي او ټولنیزي کورنۍ د اوسمهال د وروستي مشر ارواښاد غلام حیدر خان بابي فاتحه نن د دوی د کورنۍ لخوا د سردار کهندل خان په جامع جومات کښي په داسي حال کښي واخیستل سوه چي د دولتي چارواکو تر څنګ د پوهني منسوبینو، زده کړیانو، محصلینو او د ښار او ولسوالیو ګڼ شمېر سپین ږیرو، دیني عالمانو، مخورو قومي مشرانو او ځوانانو ګډون کړی و او د نوموړي د ارواح د خوښۍ له پاره یې دوعاوي وکړې .

❁ ۴ شنبه د سلواغې ۱۲ مه :

د پنجوایي ولسوالۍ د سپېروان د کلي د خواجه احمد میوندي ښوونځي چې د دښمنانو له خوا په دې وروستیو کي سوځل سوی و د ائتلافي ځواکونو له لوري د درې میلیونو او پنځه سوه زره افغانیو په ازرښت تر بیا غوني وروسته پرانستل سو چې په پرانستونکي غونډه کي یې د ولایتي شورا غړی حاجي آغا لالی، د پنجوایي ولسوال نیاز محمد سرحدي او د ائتلافي ځواکونو استازی کرنیل جیس هم ګډون درلود .

❁ ۵ شنبه د سلواغې ۱۳ مه :

نن هم د ارواښاد غلام حیدر خان بابي د فاتحې په مراسمو کښي چې د سردار کهندل خان په جامع جومات کي تر سره سوه په سلګونو هیوادوالو، د دولتي ادارو مسئولینو او کارمندانو، د معارف منسوبینو، ښوونکو، زده کړیانو، محصلینو د ښار او ولسوالیو مخورو سپین ږیرو، مشرانو او د ارواښاد علاقه مندانو او دوستانو برخه واخیسته او د هغوی د روح د خوښۍ او بخښني دعاوي ورته وسوې .

❁شنبه د سلواغې ۱۵ مه :

د ښوونکو د اتحادیې ۳۰ کسیزه ډلې خپل مشر عبدالاحد نهضتمل، لومړی مرستیاله یې سعدیه او دوهم مرستیال یې تاج محمد آرزو وټاکل .

❁شنبه د سلواغې ۱۵ مه :

د امنیي قومنداني د نهم سمت د ماموریت ودانۍ د جوړېدو د پاره د کندهار د ولایتي بیا رغوني له لوري کښېښوول سوه دا ودانۍ به په شپږو میاشتو کي د (۳۶۰۰۰۰) زره کاناډایي ډالرو په لګښت جوړېږي .

❁ یکشنبه د سلواغې ۱۶ مه :

د ولایتي شورا غونډه د احمدولي کرزي په مشري جوړه سوه، په غونډه کښي د خلکو د عرضیاڼو د ډېرښت له امله پرېکړه وسوه چې شورا دې د یکشنبې، سه شنبې او چهارشنبې په ورځو غونډې کوي وروسته د ښځینه بندیانو پر حالت د ځېړني پلاوی سوریه برنا، ستارې اڅکزۍ او زرغوني کاکړې د خپل کار رپوټ واوراوه .

بیا پر هدیرو د خپل سره کورونو د نړېدو په اړه د شورا

منشي خپل رپوټ واوراوه چي تر اوسه يې په اړه هيڅ اقدام نه دی سوی . شورا پر ټکړه وکړه چي هغه تشخيص سوي کورونه دي سمدستي ويجاړ کړه سي .

شورا د کليو د پراختيا ، سړکانو او لويو لارو او نادولتي جوړوونکو ادارو او UNOPS پر کارونو نيوکي وکړې . چي د UNOPS موسسې څخه انجنير فضل عمر او د اقتصاد رئيس محمدرحيم رحيمي يې په اړه ځرګندوني واورولې . وروسته د ولايتي بيا رغوني د کاناډايي ټيم مشر کرنيل بوسيس د خپل (۶) مياشتني دورې په اوږدوالي کي د کار رپوټ وړاندي کړ او نوی رئيس ډګرمن ټام دوليست يې شورا ته معرفي کړ . چي احمدولي کرزي د کاناډا د مرستو څخه مننه وکړه .

۞ ۲ شنبه د سلواغې ۱۷ مه :

د کندهار ښار په سلګونو ښاريانو د کندهار په واټونو کي د ډنمارک هيواد په يوه ورځپاڼه کښې د اسلام وستر لارښود حضرت محمد ﷺ ته منسوب کاريکاتورونه په کلکه وغندل . احتجاج کوونکو د ملي سوداګرو څخه وغوښته چي د دې هيواد سره سوداګريزه اړيکي وشلوي .

۞ ۲ شنبه د سلواغې ۱۷ مه :

د ولايت مرستيال غلام جيلاني همايون د خپل کار په دفتر کي د UNOPS د دفتر د عمومي مسئول سره د کندهار د بيا رغوني پر لارو چارو خبري وکړې . چي د ښار ختيځ لور ته د زابر د ايستلو او د ښځينه پارک پر جوړښت هم ژمني وسوې .

همدارنګه د ولايت مرستيال د ترکيې د مرستي د کمېټې د مسئول او په کندهار کي د افغان ترک لېسې د مدير سره وکتل چي د فاضل کندهاري ښوونځي تر څنګ به د نازوانا په نوم د نجونو ښوونځي او هم په چوڼۍ کي د روغتيايي کتنځي او نځي نساجي فابريکې د بيا پيلېدو په برخه کي مرستي تر غور لاندي ونيسي .

۞ ۲ شنبه د سلواغې ۱۷ مه

د سپين بولدک د کاريز سيمي پر امنيتي ټولۍ باندي د دښمن په بريد کي د هغوی قومندان ملا عبدالصمد وژل سوی دی . ملا عبدالصمد تيره اوونۍ د لوی کاريز په سيمه کي د کليو د خلکو سره په جګړه کي هم دوه تنه د لاسه ورکړي او دوه تنه يې ټپيان سوي وه . د بل خبر له مخي د سپين بولدک د اوت په غره کي يو تن د دوو ريموټ کنټرول بمونو سره يو ځای نيول سوی دی .

۞ ۳ شنبه د سلواغې ۱۸ مه :

د امنيې قومندانۍ په وره کي پر موټرسيکل سپاره تن د تلاشۍ پر مهال د ځان سره چاود ېدونکي توکي وچول چي د يارلس تنه يې شهيدان او ۱۴ تنه نور يې ټپيان کړه . د ميرويس روغتون مسئولينو وويل د پېښي د ځايه يې ۱۳ تنه مړي او ۱۴ تنه ټپيان راوړي دي . چي په ټپيانو کښې د (۵) تنو حالت زيانمن دی . وروستۍ ځرګندوني ښيي چي د مړو شمېر ۱۵ تنو ته ورسېد .

۞ ۴ شنبه د سلواغې ۱۹ مه :

د ارغنداو ولسوالۍ د مرنجان د محمد يعقوب او دلاورخان د کليو ښوونځي چي د دښمن د ګواښونو له مخي تړل سوي وه د پوهني رياست په هڅو بيا د يوې غونډي په ترڅ کي چي د پوهني رئيس حيات الله رفيقي او د سيمي ګڼ شمېر سپين ږيرو هم شتون درلود د زده کړيانو پر مخ پرانستل سوې .

۞ ۴ شنبه د سلواغې ۱۹ مه :

د ولايتي شورا په غونډه کښې د خلکو پر عرضپاڼو غور وسو او کسان ورته وټاکل سول څو د اړوندو ادارو سره يې د مشکل په حل کي مرسته وسي . د شاه وليکوټ د خلکو عرضپاڼه چي د امنيتي کسانو څخه يې ګيله درلوده واورول سوه څلور تنه ورته وټاکل سول . د مشرانو سره يې خبري وسوې او هغوی ته توصيه وسوه څو د ځان او خپلو سيمو د آرامۍ پخاطر د دولت سره رښتين واوسي . د دولتي املاکو د ځرګندتيا له پاره هم لارښوونه وسوه ، د برېښنا د وېش په اړه د عرض لرونکو په وړاندي د برېښنا رئيس انجنير فضل احمد ځرګندوني واورولې .

۞ ۴ شنبه د سلواغې ۱۹ مه :

د رواني روغتيا د اړتياوو د تحليل او پراختيا يو ورځنی ورکشاپ په ميرويس روغتون کي د نړی وال روغتيايي سازمان يا WHO په همغاړيتوب د سهېل لوېديځ سمت د عامي روغتيا د رئيسانو ، ډاکټرانو او روغتيايي کارکوونکو موسسو د ډاکټرانو په ګډون جوړ سو .

چي په لړ کښې يې د عامي روغتيا رئيس ډاکټر عبدالقيوم پخلا د WHO مسئول ډاکټر شاه ولي پوپل ، د عامي روغتيا د وزارت استازي ډاکټر روح الله ، ډاکټر رضا نېکمرد ، ډاکټر محمدهاشم وفا ، ډاکټر محمد کبير رحيم ، ډاکټر احمدالله فيضي خپلي معلوماتي ويناوي واورولې .

۞ ۵ شنبه د سلواغې ۲۰ مه :

د امام حسين ؓ د شهادت روځ د امام بارې په جومات کي ولمانځل سوه چي د سلګونو مسلمانانو په ګډون د همدې ورځي دردناکي پېښي په اړه د ديني عالمانو

ځر ګندوني واورول سوې . سربېره پر دولتي چارواکو، د ولايتي شورا غړو او د علماو شورا رئيس او غړو هم برخه پکښې لرله .

❁شنبه د سلواغې ۲۲ مه :

د ملګرو ملتو د بې ځايه سوو کډوالو د عالي کميشنرۍ مشر ژاموسي د کندهار د کډوالو چارو رياست د مرستيال اقا محمد نظري سره په کتنه کښې وويل : ټول هغه بېځايه سوي کډوال چې غواړي پخپله خوښه خپلو آر يزو سيمو ته ستانه سي دوی به د پام وړ بشري مرستي ورسره کوي .

❁شنبه د سلواغې ۲۲ مه :

د زرګونو هيوادوالو په ګډون سره د خرقې مبارکې په جومات کې د هغو بېګناه هيوادوالو فاتحه چې د امنيې قومندانۍ په وره کې د ځان مرګي بريد په پېښه کې شهيدان سوي وه واخيستل سوه . د فاتحې په اوږدو کښې کندهار والي اسدالله خالد، دولتي چارواکو، د پوهني منسوبينو، او زده کړيانو هم برخه لرله چې په لړ کښې يې اسدالله خالد، د علماو شورا رئيس مولوي غلام محمد غريب او ملا محمد نسيم اخوندزاده د خپلو خبرو په اوږدو کښې دغه او دغه ته ورته کړني په کلکه وغندلې .

❁شنبه د سلواغې ۲۲ مه :

د کندهار ولايت امنيتي ستونزي په يوې پراخې غونډې کښې په داسې حال کښې چې د قومونو او سرحدونو وزير عبدالحکيم براهوي، سلاکار وزير زلمی رسول يو شمير چارواکو، د ولايتي شورا غړو او ګڼ شمېر سپين ږيرو هم ګډون ورپکښې درلود د ولايت مقام کې وڅېړل سوې . غونډې ته کندهار والي اسدالله خالد، براهوي، د ائتلافي ځواکونو قومندان جنرال ايکين بيري پر خبرو سربېره د ارغنداو ولسوالۍ څخه حيات الله الکو، د ولايتي شورا څخه زرغونې کاکړې، او بسم الله افغانمل هم د موضوع په اړه خبرې وکړې .

❁شنبه د سلواغې ۲۲ مه :

د امنيې قومندانۍ پوليسو د کندهار ښار په نهم سمت کښې د هديرو په سيمه کې د يوه زاړه قبر څخه ۴۰ دانې په لاس جوړ سوي ماينونه، درې کوچني ماينونه، او اووه لاسي بمونه کشف او تر لاسه کړل .

❁يکشنبه د سلواغې ۲۳ مه :

د ډنډ ولسوالۍ د ملا کوچي د سيمې د سړک د بيا جوړوني کار د امريکا د نړۍ والې مرستندويه ادارې USAID لخوا د (۲۲۰۰۰۰) امريکايي ډالرو په مرسته د کليو د پراختيا رياست له لوري پيل او په شپږو مياشتو کښې به يې کار بشپړ سي .

❁سه شنبه د سلواغې ۲۵ مه :

د ملي اردو ځواکونو د ښار په شمالي څنډه د کوتل مورچې په سيمه کښې دوې توغندۍ چې پر ښار د توغولو له پاره تياري سوي وې ومونډلې .

❁۳ شنبه د سلواغې ۲۵ مه :

د امنيې قومندانۍ د اتم سمت پوليسو يو غلا سوی سراچه موټر چې د سپين بولدک په ولسوالۍ کې غلو د هغه له خښتن څخه په زور اخيستی و د غلو سره يو ځای ونياوه او خپل اصلي مالک ته يې موټر وسپارل سو .

❁۴ شنبه د سلواغې ۲۶ مه :

د ولايتي شورا په غونډه کښې چې د احمدولي کرزي په مشري جوړه سوه د لوی محبس د بنديانو د حالت څېړلو پلاوي د حاجي محمد حسين په مشري خپل کاري رپوټ واوراوه . په دې اړه تر غور وروسته د ولايتي بيا جوړوني د ډلي څخه غوښتنه وسوه چې د محبس د رغوني او د بنديانو د لېږدوني د موټرانو په برابر بدو کښې دي مرسته وکړي .

وروسته د فوايد عامې رئيس انجنير الياسي د جوړو سوو سړکانو د بد کيفيت څخه سر وټکاوه او د دې رياست د وسايطو څخه د شخصي ګټې اخيستني څخه يې ګيلې واورولې . بيا د بار وړونکو موټرانو د خښتنانو ګيلې واورول سوې او په اړه يې د ترانسپورټ رئيس احمدشاه اسد ځر ګندوني واورولې . وروسته د کرهڼي رياست له لوري د دولتي مځکو او بيت المال اړوند سيمو په نوم ليک باندي خبري وسوې چې دا چاري د ځرنګوالي او لا روښانتيا له پاره به بلې غونډې ته د کرهڼې رئيس راوبلل سي .

❁۵ شنبه د سلواغې ۲۷ مه :

د ايران د اسلامي انقلاب ۲۷ مه کاليزه د يوې غونډې په لړ کښې د ايران د قنسلګرۍ لخوا ولمانځل سوه . په دې غونډه کښې چې د ايران قنسل حسين شيخ زين الدين د قنسلګرۍ د غړو سره ګډون درلود د خپل استازي له لوري يې ورغلو مېلمنو ته ښه راغلاست وواېه .

او د دواړو هيوادو د ښه اړيکو پراختيا يې وغوښته . په غونډه کښې د ولايت مرستيال غلام جيلاني همايون اداري رئيس غلام فاروق فرهمند، د ولايت مشاور محمدانس او د ادارو رئيسانو برخه اخيستې وه .

❁شنبه د سلواغې ۲۹ مه :

د ملي پوليسو د روزنيز مرکز څخه چې مشري يې مل پاسوال نصرالله ظريفي پر غاړه لري نور ۳۹ تنه ساتونکي فارغه او د ټولني خدمت ته وګمارل سول .

۞۲ شنبه د کب لومړی:

د CDAG مؤسسې د مسئول رحمت الله له لوري ۱۵۰ ټوکه د خاوري پېژندني کتابونه د کندهار پوهنتون علمي مرستيال انجنير شاه محمود بري ته د پوهنتون د کتابتون له پاره وسپارل سول.

همدارنګه د افغان بېسيم شرکت له لوري ۱۰۰۰ دانې قلمونه د پوهنې رياست سره د مرستې په موخه د پوهنې رئيس حيات الله رفيقي ته ورکړه سوه.

۞سه شنبه د کب دوهمه:

کندهار والي اسدالله خالد د شاه وليکوټ د خلکو د ستونزو د اورېدو په موخه د همدې ولسوالي د ګنبد په سيمه کښې د هغوی په پراخه غونډه کښې ګډون وکړ.

ښاغلي خالد پخپلو خبرو کښې د امنيت او د دوی د سوکالي له پاره د خلکو پر همکاری ټينګار وکړ، وروسته د سيمې د خلکو په استازيتوب حاجي ملا محمداسحاق هم خبري وکړې.

۞سه شنبه د کب دوهمه

د ملګرو ملتونو د نړي وال سازمان مرستيال او د افغانستان له پاره د همدې سازمان خانګړي استازي ټامکوپکس د کندهار والي اسدالله خالد او د ولايتي شورا د غړو، سپين ږيرو او سيمه ايزو مشرانو سره د منډيګک په ماڼۍ کښې په داسې حال کښې چې د سهېل لوېديځ سمت له پاره د همدې سازمان د سياسي خانګي يوناما مسئول طلعت بېګ او د ولايت مرستيال غلام جيلاني همايون هم شتون درلود وکتل، په خبرو کښې د سپين ږيرو لخوا په ټينګار سره د باندنيو لاسوهنو د بندېدو پر غوښتنه سربېره ښاغلي خالد د دولتي اداري سيستم د ظرفيت د لوړوالي، امنيتي ارګانونو د پياوړتيا او بيا رغوني د پروژو د پلي کېدو غوښتنه هم وکړه.

۞۳ شنبه د کب دوهمه

د عامې روغتيا په رياست کښې د همدې رياست د مشر ډاکټر عبدالقيوم پخلا په مشري د ساري ناروغيو د خپرېدو د لارو چارو د مخنيوي او درملنې په اړه له اړوندو ډاکټرانو غونډه جوړه او يو لړ پرېکړې وسوې.

۞۴ شنبه د کب ۳ يمه:

ولايتي شورا په نارنج ماڼۍ کښې په خپله غونډه کښې د رارسېدلو عرضپاڼو د غور په لړ کښې د تلاښيو پر مهال د اتل قول اردو د ځينو مؤظفينو د سخت چلند، د لومړي سمت د سړک جوړولو د کار د سستيا، او د لوړو مار کېټونو د جوړښت څخه د نورو کورونو د اوسېدونکو ګيلې وڅېړلې او د اړوندو مسئولينو تر څرګندتيا وروسته يې د حل پر پرېکړو ټينګار وسو.

۞ ۵ شنبه د کب ۴ مه:

د کډوالو د چارو رئيس محمدنبي ساپي په هغه غونډه کښې چې د ملګرو ملتونو د عالي کميشنري استازي ايډمون او د نړی وال غذايي پروګرام مسئول القاسم سربېره د يو شمېر اړوندو دولتي او نادولتي مؤسسو استازو هم شتون درلود څرګنده کړه چې د مارچ تر مياشتې وروسته به UNCHR او WFP بېځايه سوو کډوالو ته د بشري مرستو رسول ودروي.

۞شنبه د کب ۶ مه:

پرون او نن د کندهار د ارغنداو، ميوند، سپين بولدک، دامان، شګي، ډنډ او ژړی په ولسواليو کښې د کوکنارو د کښت ۸۹۲ جريبه مځکه د دې بوټي څخه پاکه سوه.

۞شنبه د کب ۶ مه:

ملکي ساحې ته ستنېدونکو يا DDR سوو ۸۰ تنو ته تر ورهېرزو زده کړو وروسته چې شپږ مياشتې يې د نل غځوني، موټر جوړوني، ترکاڼي، برېښنا او ودانيو د جوړښت په برخه کي سر ته رسولي وې نن په ميخانيکي لېسه کي د يوې غونډي په لړ کي سندونه ورکړه سوه دا بهير د جاپان په مالي مرسته په کندهار کي د UNOPS مؤسسې او د کار او ټولنيزو چارو د رياست په مرسته را پيل سوی دی.

۞يکشنبه د کب ۷ مه:

د قبايلو ښوونځي چي يوه مياشت مخکي سوځول سوی و بيا د زده کوونکو پر مخ د زده کړي په موخه پرانستل سو. په ښوونځي کي د لوست د بيا پيل په همدې ورځ د ولايت بيا رغوني د ډلي له لوري د لوست د توکو او بستو مرسته سوې او د يونسف له لوري ور ته کردی برابري سوي دي.

۞ يکشنبه د کب ۷ مه:

۶۰ تنه د دولت په وړاندي د رپدلي طالبان د سولي د ټينګښت د ملي کميسيون په زيار د دولت سره يوځای سول. دغه کسان د بېلابېلو سيمو دي چي د طالبانو د واکمني پر مهال د ميمني ښاروال ملا محمد رسول حيدري او د جوزجان د امنيې قوماندان ملا شاه مير اخوند هم ګډون پکښي لري.

۞۴ شنبه د کب ۱۰ مه:

په هغه غونډه کښې چې د سهېل لوېديځ سمت د ولايتونو د واليانو او په هيواد کښې د ائتلافي ځواکونو عمومي

قوماندان ایکن بیري په ګډون د کندهار په هوایي ډګر کښې جوړه سوې وه د ائتلافي ځواکونو قوماندې رسماً کاناډایي ځواکونو ته وسپارل سوه. ایکن بیري په دې سمت کښې د بینټ ۷۶ ځواک تر سره سوي دندې وستایلې او ویې ویل چې د ۱۰۳ یمي لوا ۲۱ تنو په تېره موده کښې دلته ځانونه هم له لاسه ورکړي دي.

۴ شنبه د کب ۱۰ مه:

د جاپان د نړۍ والي مرستندیه مؤسسې جایکا په مالي مرسته او د صدا انجو په تخنیکي همغاړیتوب ۳۶ تنو د لاسي پمپونو جوړولو زده کړیانو ته د سندنو سره یو ځای د دوی د همدغه زده سوي ورهنې سامانونه هم وسپارل سول.

۴ شنبه د کب ۱۰ مه:

د کندهار امنیې قوماندانی څرګنده کړه چې په دوو ولسوالیو کي یې ۷۹۲ جریبه نوره مځکه هم د کوکنارو د کښت څخه پاکه کړه.

۵ شنبه د کب ۱۱مه:

د کندهار د ټولو دولتي ادارو د رئیسانو ګډه غونډه چې د ولایت د مرستیال غلام جیلاني همایون په مشري جوړه سوه د کندهار ښار په ختیځ کي د احمدشاهي مېنې په اړه د راولاړو سوو ستونزو د څېړني پلاوي خپل رپوټ واوراوه، او دلا څرګندتیا په موخه د دې مېنې د جوړوني مسئولین راتلونکي غونډي ته راوبلل سوه. په غونډه کي د اطلاعاتو کلتور رئیس عبدالمجید بابې هم د زاړه ښار او نارنج مانۍ د ساتنې په اړه څرګندوني واورولې. هغوی وویل د ښار د کلا څلور زره متره دېوال د سر څخه تر پایه د ۳۵ متره په سور د یوه کس له لوري چې ټولو ورته په رډو ستر ګو کتل هوار سوېده. همدارنګه بابې د سرف باندنی مؤسسې له لوري په دغه کلا کي د خودسره جوړو سوو کورونو د ناپاکو اوبو د ایستلو له پاره د پاخه لښتي د ایستلو په اړه هم د پریکړي غوښتنه وکړه. او پریکړه وسوه چې د اطلاعاتو کلتور رئیس عبدالمجید بابې په مشري دې کندهار ښاروال زمری عثمان، کاډسټر رئیس سردار محمد، د پاما رئیس انجنیر ننګیالی او د انسجام رئیس انجنیر ضیاء دې د سیمي څخه د نژدې کتنه وکړي او په اړه دې راتلونکي غونډي ته څرګندتیا برابره کړي.

جمعه د کب ۱۲ مه:

د شورندام کوتل په سیمه کښې خان مرګي برید هغه مهال تر سره سو چې د کاناډایي ځواکونو د موټرانو کاروان د دې سیمي څخه تېرېده. د ۲۰۵ اتل قول اردو قوماندان تورن جنرال رحمت الله روفي وویل په پېښه کښې څپله چاودونکي وژل سوی او د هرات ۷۹۶۱ شمېره موټر چې چاودنه پکښې سوې ده وران سوی دی. په پېښه کښې یو تن کاناډایي سرتېری او یو تن لاروی ټپیان سوي.

د وژونکي د کالیو پر جیب په اردو د لښکر جنګون کلمې هم لیکل سوي وې.

شنبه د کب ۱۳ مه:

د پاکستان د مرستیال قونسل اسحاق احمد خټک له خوا د باندنیو اړیکو په ریاست کښې د ولایت مقام اداري مرستیال غلام فاروق فرهمند ته د اتو ولایتونو (کندهار، هرات، نیمروز، فراه، بادغیس، زابل، هلمند او ارزګان) له پاره د بستو، کتابچو، پنسلونو او پنسل پاکونو سوې مرسته د (۵۰۰۰۰) زده کړیانو له پاره وړاندي سوه.

خټک وویل دا مرسته د هغه ۲۵۰ میلونو ډالرو د مرستي څخه برابره سوې چې پاکستان یې ژمنه کړېده.

یکشنبه د کب ۱۴ مه:

د ولایت بیا رغوني یا PRT مشر د شاه ولیکوټ ولسوالی د شینکي په کلي کي د سیمه ایزو مشرانو په غونډه کښې د یوه تن لخوا په ناځاپي توګه په تبر باندي سخت ټپي سو. د ولایتي بیا رغوني مطبوعاتي مسئولي ژولي وویل دا هر څه ناځاپي وسوه برید کوونکی هم د امنیتي ځواکونو په ډزو سره ووژل سو. هغې وویل ټپي سوی افسر تر درملني لاندي دی خو روغتیایي حالت یې د اندېښنې وړ دی.

یکشنبه د کب ۱۴ مه

د کوکنارو د کښتونو د ویجاړولو په دریم پړاو کي د امنیې قوماندانی له خوا ۸۸۰ جریبه مځکه په میوند ولسوالی کي، ۱۱۰ جریبه مځکه په ژړۍ ولسوالی کښې، ۲۴۰ جریبه په ډنډ ولسوالی کښې، ۱۳۰ جریبه په ارغنداو ولسوالی کښې، ۱۳۰ جریبه په دامان ولسوالی کښې، ۱۲۰ جریبه د شګي په ولسوالی کښې، ۶۵ جریبه په سپین بولدک کښې د کوکنارو له کښتونو څخه پاکه سوې ده.

سه شنبه د کب ۱۶ مه:

د جاپان سفیر په کندهار کښې د کندهار پنجوایي ۲۰ کیلومتره سړک په پرانستونکې پراخه غونډه کښې په داسي حال کښې چې کندهار والي اسدالله خالد، د ولایتي شورا رئیس احمدولي کرزی، د ادارو مسئولینو او د ولسوالیو ګڼ شمېر سپین ږیرو او د شورا غړو برخه لرله ګډون

وکړ .

غونډي ته د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی رئیس عبدالمجید بابي د هر کلي وینا واورول وروسته احمدولي کرزي د پنجوایي، ډنډ او ژړي ولسوالیو د شورا غړو او سید عبدالظاهر آغا ویناوي وکړې .

بیا د UNOPS مؤسسې استازي انجنیر فضل عمر د همدې سړک په اړه فني معلومات وړاندي کړه، وروسته کندهار والي وینا وکړه او د نورو ویناوالو غونډي یې د جاپان د مرستو څخه مننه وکړه .

❁ ۳ شنبه د کب ۱۶ مه :

خلور سوونځي او یو روغتیایي کتنځي د سپین بولدک او شګي په ولسوالیو کښي د آسیایي پرمختیایي بانک په مالي مرسته د هوګ مؤسسې له خوا د ۳۰۱۰۰۰ ډالرو په لګښت جوړ سول .

❁ ۴ شنبه د کب ۱۷ مه :

د ښځو نړۍ واله ورځ د ښځو په پراخ ګډون سره د منډیګک په ماڼي کښي د کندهار والي اسدالله خالد او د ادارو د یو شمېر رئیسانو په شتون سره ولمانځل سوه .

غونډي ته د ښځو د چارو رئیسې صفیه عمه جاني، ګلالۍ اڅګزۍ، ملالۍ کاکړ، سوریې برنا، د یوناما څخه سونیا بهمند، سیمین ګلي څېړۍ، معصومې، د جایکا مؤسسې څخه ژیلا، شاهدې حسین، جمیلې یوسفي، د هبیتات مؤسسې څخه صفیې. او د علماو شورا څخه عبدالجلیل کمینه، د معیوبینو په استازیتوب شیرین ګلي، او د ښوونې او روزنې رئیس حیات الله رفیقي ویناوي واورولې .

چې په لړ کښي یې د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی رئیس عبدالمجید بابي او سیدجان زیارکښ په دې اړه شعرونه هم واورول، غونډه د اسدالله خالد لخوا ارزیابي او ورسره یې هر اړخیزه وینا واورول . وروسته د سوغاتونو تر وېشلو برخوالو په غرمنې مېلمستیا کښي چې د اسدالله خالد له لوري جوړه سوې وه برخه واخیسته .

❁ ۵ شنبه د کب ۱۸ مه :

د ولایت مقام اداري غونډه د ولایت مرستیال غلام جیلاني همایون په مشري د ولایت مقام د غونډو په لویه خونه کښي جوړه سوه، په غونډه کښي د احمدشاهي مېني جوړوونکو د دې مېني د تر لاسه کېدو او بشپړېدو په اړه د غونډې د برخوالو پوښتنو ته ځوابونه وویل وروسته د موضوع د ښه څېړلو ته د کاډستر، ښاروالۍ، کرهنې، ښار او کور جوړولو، اقتصاد، فواید عامې او سوداګرۍ د اطاقونو د ریاستو څخه ګډ پلاوی غوره سو وروسته د زاړه ښار او نارنج ماڼۍ په ساحه کي د خودسره کورونو د جوړېښت د مخنیوي او هم په کلا کي د کورونو د ناپاکو اوبو د ایستلو په اړه د سرپ مؤسسې له لوري د پاخه لښتي د جوړېدو په اړه په تېره غونډه کښي د ټاکل سوي پلاوي په مشري د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی رئیس عبدالمجید بابي د سترګولیدلي حال او نظر واوراوه . د هغوی نظر د ټولو له خوا تائید سو چې د زاړه ښار په ټوله ساحه کښي دي د کورونو جوړول په ټپه ودرېږي او د امنیې قوماندانۍ دي هغه په پرله پسې توګه وڅاري . همدارنګه د نارنج ماڼۍ په سل متره واټن کي دي یو حفاظتي دېوال جوړ او د سرپ مؤسسه د ولسمشر د فرمان او د تاریخي آبداتو د ساتني د قانون پر بنسټ نه سي کولای په زاړه ښار کي د خودسره کورونو اوبو ته پوخ لښتي جوړ کړي . همدارنګه ټولو اړوندو ریاستونو لکه برېښنا، مخابرات، اوبو رسولو، او ښاروالۍ ته په ګوته سوه چې په زاړه ښار او نورو تاریخي اماکنو کي دي د خودسره کورونو له پاره د هر ډول آسانتیاوو د برابر بدو څخه مخنیوی وسي . او هم دي د اقتصاد ریاست ټوله مؤسسات وپوهوي چې په تاریخي ځایونو کي د هر ډول پروژو د تطبیق څخه ځانونه وګوري .

❁ ۵ شنبه د کب ۱۸ مه :

د ولسوالیو د اوسېدونکو ستونزي د ولایت په ماڼۍ کښي د ولایت مرستیال غلام جیلاني د هغوی د استازو په ګډه غونډه کښي واورېدې او د هوار بدو له پاره غور پر وسو .

❁ ۵ شنبه د کب ۱۸ مه :

په لوی محبس کښي پر ښځینه بندیانو د پوښتني په لړ کښي د ښځو د چارو رئیسې صفیه عمه جاني او د ولایتي شورا غړو هغه سوغاتونه چې د UNDP، UNCHR او ښځو چارو ریاست له لوري برابر سوي وه ووېشل .

❁ شنبه د کب ۲۰ مه :

د چیلغور د ۱۴ کیلومتره سړک د جوړولو کار چې د جاپان هیواد په مالي لګښت د UNOPS د اداري لخوا جوړېږي نن پیل سو .

❁ شنبه د کب ۲۰ مه :

د کندهار په ۹ ولسوالیو کښي ۶۴۰ جریبه مځکه د کوکنارو له کښت څخه پاکه سوه .

❁ یکشنبه د کب ۲۱ مه :

د ولایتي شورا غونډه د دې شورا د رئیس احمدولي کرزي په مشري د نارنج په ماڼۍ کښې جوړه سوه په غونډه کښې د وروستیو امنیتي ستونزو په اړه د امنیت د آمر عبدالحکیم سمونوال څخه یو شمېر پوښتني وسوې. د فیضون نیکه د ترانسپورټي ټولني پر غوښتنه غور وسو او درې کسیزه هیئت یې د ښه غور له پاره وټاکل سو وروسته د ترانسپورټي اډو د موقعیتونو او پر هدیرو د خودسره کورونو او ښوونکو له پاره د ځمکو د ورکړې په اړه هم دوهم د ګچ خانو د چښلو د اوبو، د ښوونکو د ځمکو د نمرو، امنیت او په ولسوالیو کښې د ولایت بیا رغوني د ډلې له لوري د لمړني بر ښنا په اړه غوره وسو.

۞ دوشنبه د کب ۲۲ مه:

د یوه اته کلن کوچني د وژلو په تور د امنیې قوماندانی پولیسو هر یو عبدالشکور د عبدالغفور زوی، د کابل د دوه لاري د ودانیو اوسېدونکی قدرت الله د عبدالرشید زوی، د انصاري مېنې اوسېدونکی بریالی مشهور په الماس د محمدیوسف زوی، د منزلباغ اوسېدونکی محمدموسی د نیولي دي، هغوی څو ورځي دمخه د ترانسپورټ ریاست د اداري مامور اسدالله زوی د پیسو د ورکړې په موخه تښتولی او بیا یې وژلی و د هغه مړی د نساجي نخي فابریکې سره نژدې وموندل سو.

۞ ۲ شنبه د کب ۲۲ مه:

د مخدره توکو څخه د ګټې اخیستني په زیانونو د پوهاوي غونډه نن د دیني عالمانو، سپین ږیرو او مخورو په ګډون په خوشبخت سالون کښې د پیپ مؤسسې لخوا جوړه سوه.

۞ ۲ شنبه د کب ۲۲ مه:

د ښځو نړۍ واله ورځ د میرویس روغتون د سرطبابت لخوا د همدې روغتون په تالار کښې جوړه سوه چي په لړ کښې یې د روغتون سرطبیبي شریفې، ډاکتر عبدالجبار، صفیه عمه جاني او ډاکترې فرشتې خبري وکړې.

۞ ۵ شنبه د کب ۲۵ مه:

د میانشین په ولسوالی کښې د یوې نښتي په پایله کښې ۶ تنه طالبان او پنځه تنه پولیس ووژل سوه او ۶ نور پولیسان ټپیان سوه. د دوو تنو ټپي پولیسو روغتیایي حالت ستونزمن دی.

۞ ۵ شنبه د کب ۲۵ مه:

۱۷۰۰۰ جریبه ځمکه د میوند، سپین بولدک، دامان، ارغنداو، شاه ولیکوټ، او ژړی په ولسوالیو کښې د کوکنارو له کښت څخه پاکه سوه. کندهار والي اسدالله خالد وویل دا بهیر به د کوکنارو تر وروستي بوټي پوري وغځېږي.

۞ ۵ شنبه د کب ۲۵ مه:

د ولایت اداري غونډه د ولایت د مرستیال غلام جیلاني همایون په مشري د ارګ په ماڼۍ کښې جوړه سوه چي د سېلو ریاست پر وړاندیز چي د سړکانو د وراني د مخنیوي له پاره یې د ډېر بار د راګرځولو په هکله وکړ غور وسو او د ترافیکو اداري، سېلو، فواید عامې، ګمرک او ترانسپورټ ریاستونو ته دنده ورکړه سوه چي د موضوع په اړه لازم غور او څېړنه وکړي.

همدارنګه د ځینو پانګه والو هغه وړاندیز چي د چرګانو، څارویو او کبانو د روزني له پاره یې د ځای غوښتنه کړې وه غور وسو د کاډستر، ښار او کور جوړولو، کرهنې، او ورغتیا ریاستونو ته دنده ورکړه سوه چي په دې اړه د هواري چاري ولټوي.

۞ شنبه د کب ۲۷ مه:

د سهېل لوېدیځ سمت د ملي پولیسو روزنیز مرکز ۱۸۲ تنه نور ورزل سوي پولیس ټولني ته وړاندي کړل.

۞ شنبه د کب ۲۷ مه:

د کلوب مؤسسې څلور تنه باندني کارکوونکوي چي درې یې البانیایان او یو یې الماني و د دښمن له لوري تر بېولو وروسته د وژني پړه یې د طالبانو ویاند پر غاړه واخیسته. د هغوی مړي چي د هلمند ولایت په مربوطاتو کښې وژل سوي وه د ګرشک او میوند ولسوالیو تر منځ وموندل سول.

۞ شنبه د کب ۲۷ مه:

د عامې روغتیا ریاست له لوري د WHO په مالي او تخنیکي مرسته د لابراتوار او تکنیشنانو د روزني په کورس کي فارغو کسانو ته د یوې غونډې په ترځ کښې بري لیکونه ورکول سوه.

۞ یکشنبه د کب ۲۸ مه:

د دوهم سمت اوسېدونکی سیدمحمد مشهور په بر بند پخپل کور کښې د شرابو د جوړولو په تور د امنیې قوماندانی د اړوندي څانګي لخوا په دا ، حاا، کښد ونیول سو چي د شرابو جوړولو ساماز هم ورسره وه.

# د" کانټ" له نظریاتو څخه

د خپلو وړتیاوو د پکار اچولو پر ته چي د انسان د خپلچاروکي ذهنیت تولیدات دي ټولنه پرمختګ نه سي کولای یو څوک په شپون کېدو سره کولای سي چي خاموش او له امنیته ډک ژوند تېر کړي مګر په داسي صورت کي د ده ټولي وړتیاوي په ده کي پټي پاتیږي او له منځه ځي داسي سړی د لوړو مقاصدو لپاره هیڅ نه سي کولای د فطرت څخه مننه کول پکار ده چي هغه په انسان کي حسد، بغض، ویاړ، غرور، ځواک، هوس، حرص او پیاوړتیا رامنځته کړي دي که نه د پورتنیو ولولو او غوښتنو پر ته به د بشر ټولي وړتیاوي د تل لپاره په خواره خوب بیدې سوي وای او ژوند به بې له څه پرمختګه درېدلی وای.

انسان امنیت او هوساینه غواړي که څه هم فطرت د ده په دې راز خبر دی چي د ده ښېګڼه په کوم شي کي ده مګر بیا هم فساد او جګړې ور ته رازېږوي انسان غواړي چي په آرامښت او سکون سره ژوند وکړي مګر فطرت د ده د آرامښت او سکون شپېږ په غم ور لېږي، په ویر، ځورېدنه، پرېشانی او ستونزو کي یې اچوي تر څو د ده وړتیاوي وځلیږي او ښکاره سي. انسان له غمونو او ستونزو څخه د خلاصون لپاره تل په پرله پسې هڅو لګیا وي مګر فطرت د انسان د هیلو او ارمانونو هیڅ پروا نه کوي ده په انسان کي دا ولوله را منځته کړې ده چي دی ...نه هم قرباني کړي او د نورو خوښی دي هم په زوره یرغمل کړي ... ه رسولو کي دی د یوه ړانده په شان سي او د فطرت ماقتهنه، حرص، ظلم، درندګي او هوسناکي ده حهالت او اخلاقي کمزوري دي.

